# د رحمان بابا دیوان

**دريمه بڼه**

محترمه لوستونکيه:ـ

السلام عليکم.
خوښ يم چي د پښتون قوم ددې ستر عارف شاعر، جامِع ديوان تاسو ته وړاندي کوم. عبدالرحمن بابا نه يوازي په موږ دا حق لري چي ويې پيېژنو او شعر يې ولولو، بلکه دا د هر چا حق دی چي د بابا له نصيحته ډک کلام وروړسېږي. پدې ديوان کي د عبد الرووف بېنوا صاحب، تبسم صاحب، حبيب الله رفيع صاحب، غروال صاحب او نورو محترمو ليکوالانو له ليکل شويو ديوانونو څخه کار اخيستل شويدي. ځکه نو بعضي الفاظ په دوه ډوله ليکنه شوې وي، او په (/) علامه به سره جلا شوې وي. پوهاند به خپل نظر را استوي چي کوم يو ټکی يې سم شي. هڅه شوېده چي دا کتاب د افغانستان په مرکزي معياري پښتو باندي وليکل شي (ترڅو يې بر پښتانه په آسانه ولولي). په هره برخه کي چي غلطياني وينئ، مهرباني وکړئ را په ګوته يې کړئ. ستاسو مشرانو په مرسته به دا ديوان په راتلونکي کي لا ښه شي. هغوي چي غواړي ددې دېوان په سمون کي برخه واخلي، هغوي ته يې سافت کاپي (په ايم ايس ورډ کي) تياره شوېده.

ډاکټر محمد هاشم نظروال

16477701013+
mnaz@proton.me

**ب**



**ت**



**ث**



**ج - ح**



**خ**

**ن**



**و**

**شه تر که**



**له تر يه**

**ای تر دی**

**ضروري يادَوَنې:**

| په غربی لهجه | په شرقي لهجه | په غربی لهجه | په شرقي لهجه |
|---|---|---|---|
| سي | شی | اوښکې | اوښې |

| شو | شه | له... | تر... |
|---|---|---|---|
| كه، كړ، كړو، كړه، كړي | كا | لپاره | د پاره |
| كړو | كړ | له... | د... |
| لمبه | لنبه | زما | ځما |
| مشک | مښک | چا له | ځبله |
| لمر | نمر | چيرته | چرته |
| ... او ... | ... و ... | چي | چه |
| ي... | ې... | زما | ځما |
| | | ځ | ز |
| | | | |

**د ځینو لغتونو معنی**

| ابته (حبطه) | عبث، بې معنی | اختلاط | ګډون، خبرې |
|---|---|---|---|
| ابلق | آس، برَګ | | |
| ارهنډ | بېد انجیر | | |
| آدینه | جمعه | | |
| اشراق | د ځاښت لمونځ، طلوع کول | | |
| الووې | وریت شوی | | |
| افسون | جادو، ویده، دم شوی | | |
| الغیاث | پناه غواړم، فریاد | | |
| الوس (اولس) | ټبر، قوم، طایفه | | |
| آماج | موخه، هدف | | |
| آماس | پړسوب | | |
| اوتاد (د اوتد جمع) | یوه روحاني مرتبه ده. موري، مېخونه | | |
| اوډنی | یو ډول ښځینه پوړنی دی، غالباً په ودو کې په سرکیده | | |
| اوراد | د وِرد جمع. دعا ګانې | | |
| اورېښتی | پتنګ، پروانه | | |
| اوږمکه | میاشت، ماه | | |
| اولاق (اولاغ) | خر | | |
| اهاړ | د اوړي د سختې ګرمي موسم | | |
| اهداد (هیداد) | سزا، پاداش، سرزنش | | |
| ایاغ | د شرابو پیاله او کاسه | | |
| باده | شراب | | |
| باړه | یو مشهور خوَړ دی | | |
| بابې (بهائي) | رورور | | |
| بد سګال | بد ذات، بد جنس | | |
| برنا | ځوان، زلمی | | |
| بساط | د زمکې مخ، فرش | | |
| بطال | بد/باطل/غلط ویونکی، | | |
| بګاړ (بګیار) | لبوه، شرمښ | | |
| بیچاوڼي (بیچاوڼه) | د عزت جامې، بستره، روجایي | | |
| پارسا | پرهېزګار، زاهِد | | |
| پارځي | د جوار□ کولو دانې | | |
| پاسلل | سپارل | | |
| پایَله | پایزیب | | |
| پخساک | پریشاني، غم او خپګان | | |
| پراته | پرته، بې ځایه، بې مورده | | |
| پسندل | غوره کول | | |
| پکو | په ځان پوري تنګ او سټړی | | |
| پنهم | پنهان، پټ | | |
| پېځل | زغمل، تحمل کول | | |
| پیچومي (بچوي) | د مچنوغزي پړی (بچوکی). مجازاً اوږدې ځنې او کَوځ□ | | |
| پیړ□ | د کېناستو تخته، د ناستي کټګی، کټځی | | |

| پېشاب | مِتيازي | | |
|---|---|---|---|
| تبرا | بېزارېدل، ټېرا کېدل | | |
| تراړه | تيره، کاڼی، ډبره | | |
| تراهي | وېره | | |
| ترو | تُو | | |
| توسن | نيلی | | |
| تولا | محبت، دوستي، رښتينګلوي، مينه | | |
| تبزل | ځغلول، پرې سپرېدل | | |
| ټوکرکی | د پوزي يوه ټوټه يا ټوټک | | |
| ټنډ | په زړه موړ، سخت، محکم | | |
| چليکار | هغه کروندګر چي په ټاکلې برخه، يا مزدوري د چا ځمکه کري | | |
| چندڼ | صندل | | |
| چور | چوړ، چواړ | | |
| چوک | يو کم شی، لږ څه | | |
| چوګان | نېزه، دډ، يا توښا ډنډه | | |
| چووه | عطر، خوشبويه مواد | | |
| حط | ايسته کول، د يو بار کوزول | | |
| خاصا | نېک خويه، وتلی | | |
| خاکروب | جارو کښ | | |
| ختول | خټه لړونکی، ناپاک | | |
| خپسر | خپل ځان | | |
| خدنګ | غشی، خندق | | |
| خراړه | يو ډول دښتي وړه مرغ | | |
| خرام | ناز او نِزاکَت(لړونکی تګ) | | |
| خمر | شراب، مُل | | |
| خمسور | همراز، همراه | | |
| څښکو | چشکو يو بوټی چي د لېچنو سترګو دعلاج لپاره پکي اچول کېږي | | |
| څړ | د کَپَړ د سر اوږده وېښتان | | |
| څلې څولې | ګنډه ګونډه، زوړ سامان، ګند او کچکول | | |
| ځبله | سره، يو له بله | | |
| دد | ځناور | | |
| دښن | دښمن | | |
| دراج | تَنځرۍ (يو مرغه دی) | | |
| درای | ږغږغ، ګونګرو، ژرژر، جرس | | |
| دلق ارزق فام | زرغون کند، ګودړ | | |
| دواب | څاروي، څلوربولي، بوده ګان | | |
| دوڅار | څرګند، ښکاره، ورمخامخ، دچار | | |
| ديبا | ورېښمين ښکلی ټوکر، ميلک | | |
| ډېر | تباه، ټبر، کهول | | |
| ډليال | د ډلې ملګری | | |
| راج | راجا (واکمن) | | |
| راح | خوښي، نشاط، مجازاً شراب | | |
| رت | ډېر لږ، نا څيز، کم وزنه شی | | |
| رسن | رسۍ، تناو | | |

| رصاص | قلعي، سرپ | | |
|---|---|---|---|
| رعنا | ښکلی او متناسب اندام | | |
| رنځړی | رنځور، ناروغ، علیل، مجازاً زیړ رنګی | | |
| ریمن | خیرن، بد رنګ، ناولی | | |
| زباد | اثبات | | |
| زبر | یاد، په یاد | | |
| زمول | مړاوی، بې سېکه، ضعیف | | |
| زوړ | نشت، نابود، جرام | | |
| زوم | کم، کمی | | |
| زېرمه | تدبیر، ذخیره، پانګه، پاسره | | |
| ژغړ | ژغورلی | | |
| سالکان | زاهدان، عارفان | | |
| ساهو | آزاد، اصیل | | |
| سترغلی | کولک، د سترګو غاښي(کاسه) | | |
| ستور | څاروي | | |
| سخباب | نولی | | |
| سراښ | حریص | | |
| سفال | ټیټ، بې قدره، پستي او بې همتي، کودړی | | |
| سقلات | خپل ځان پېټول | | |
| سکه | نُو، ځکه، ګویا، لکه چي | | |
| سمک | کب، ماهی | | |
| سنډاسي | واښدې، کېدل، ملنګ، کېمیا لټوونکی ملنګ | | |
| سولند | حریص، بخیل، ممسک، لکه سولند سپي | | |
| سوها | یو ډول پخوانی ټوکر دی | | |
| سپپاري | د تودو سیمو یوه لوړه نر□ ونه | | |
| سیم | یو ګران بیه فلز | | |
| شب داج | توره شپه، د تروږم□ شپه | | |
| شط | سیند، هغه ستر رود چي دریاب ته ګډیږي | | |
| شهاب | ستور، ستوري | | |
| طره | جوغه | | |
| طوق | غاړک□، امېل | | |
| عتاب | قهر او غصه | | |
| عرعر | سپېدار | | |
| غبغب | د چرګ جنجړې، ججوری | | |
| غربال | غلبېل، پرویځې | | |
| غزا وشوه | دا یو شوق دی، نوځه وشول؟(یو تکیه کلام) | | |
| غور | برخه، نصیب، قسمت، مجازاً میراث | | |
| غورځی | په زوره چیغي ایستل، په اتڼ کی ټوپونه او چیغی اېستل | | |
| غوری | سخت انتظار، غوړلکی، دچا د راتګ د زېري په انتظار | | |
| غوک | لویه څنګښه (چونګښه)، شلانډه | | |

| غوندی | د وزغنو جوال | | |
|---|---|---|---|
| غوېدژبی | فصیح، بلیغ | | |
| فلوس | د فلس جمع، یو ډول میوه | | |
| قرقره | د چرګ تاج، چرګ خولی، تاج، شوغه | | |
| قنج (غنج) | ناز | | |
| کاړ | د وړوکانو ډېر | | |
| کام | هدف مرام | | |
| کاواک | ډډ، ګوګ | | |
| کروړ | سخت، محکم | | |
| کړیکه | چیغه، وېروونکی غږ | | |
| کښیده | نقشه، انځور | | |
| کلاب (کلب) | سپی | | |
| کنګال | مفلس، نېستمن، مېنځل شوی | | |
| کوتل | ذبح کول، حلالول، پوستکی ترې ایستل | | |
| کودیکه | یو ډول خاورین دېګ دی | | |
| کوړمه | کورنۍ، اهل بیت | | |
| کوله | د ساقي د پاسه د ګل برخه | | |
| کوی | چم، کوڅه، مالت | | |
| کهی | ډنګر، لاغر | | |
| ګانده | سبا، راتلونې ورځ | | |
| ګایل | زخمي، ځُوږ | | |
| ژوبل | زخمي، پرهارژلی | | |
| ګرام | کلی، سیمه، استو ګنځی | | |
| ګروهېدل | عقیده لرل، معتقد کېدل | | |
| ګړیال | زنګ | | |
| ګورهنډه | وړه تیاره کوټه، په غرو کې بانډه ډوله څپر، مجازاً قبر | | |
| ګوټه | د شطرنج دانه | | |
| ګوهار | د غواوو پاده | | |
| ګوی | پنډوس، پنډوسکه | | |
| ګنګو | زعفران | | |
| ګېدی | ناپوه، بېړا، احمق | | |
| لارغه | درنګ، ځنډ | | |
| لال | ګونګ، یو ډول انګور دی | | |
| لګام | واګې، قبضه | | |
| لو | لوګې | | |
| لوڅېدل | یوه داسې اوږده مبارزه کول چې یوه سیاله ډله هم بریالۍ نشي، خو لاس هم وانخلي | | |
| لوښتل | په کوچ پېل کول، لېږدېدل | | |
| لونل | پاشل | | |
| مال و منال | شته، هستي او دارایي | | |
| ماوا | استوګنځی، مسکن | | |
| متره | نایاب، نشست، زوږ | | |
| مټ | بازو، هاند، همت | | |
| مجذوب | جذب شوی، عاشق شوی | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مجمر | نغرى، دېگدان | | |
| مخمور | مست، نشه | | |
| مخنث | نرښځى | | |
| مذمت | بد ويل، غيبت | | |
| مرسته | طلب، لټون، كومک | | |
| مرغچه (مرغچې) | كونجكه، خرموره | | |
| كونجكه | خرموره | | |
| مستدام | همېشه، تل | | |
| مشاطه | ډمه، سينګاروونكې | | |
| مښګيرک | يو مارغه | | |
| مصحف | كتاب، پاڼې چي سره يو شوې وي | | |
| مطر | باران، ورښت | | |
| معتيو (معتوه) | غير مكلف، لېونى ډوله | | |
| مغاک | ګودال، ژور غالى | | |
| مقراض | بياتي، قيچي | | |
| منجلاب | خوسا ډنډ | | |
| منزه | پاک، سپېڅلى، پاكيزه | | |
| مواس | چغولګر | | |
| ميثاق | ژمنه، وعده، عهد، پيمان | | |
| ميزر | پړونى، چادري | | |
| مهوت | پيلبه، پيل والا | | |
| مهين | معاش، تنخوا | | |
| نارون (نارو) | يو ډول دانه چي دچټلو اوبو له څښلو پيدا كيري اوپه مخ كي يې دتارغوندي چينجي وي | | |
| ناړ | ډنډر، ساقه | | |
| ناغه | د سترګو سره رګونه | | |
| ناوک | غشي | | |
| نخل | د خرما ونه، خجوره | | |
| ندا | غږ، اواز | | |
| ندى | زود، وړوكى سيند | | |
| نغړول | نغرل، په يوه سا تېرول | | |
| نغوتل | غوږ نيول، د خبرې منل | | |
| نغوته | اشاره، تلقين | | |
| نمري | جامې، لباس، كالي | | |
| نمط | طريقه، نوع، رَوِش، همفكره ډله | | |
| نول | غم، پرېشاني، اندوه | | |
| نوميږ | نومول شوى | | |
| واړږ | غوره، وړ | | |
| وبله | يو تر بله | | |
| ورژلى (ورژل) | رېزه رېزه كول، مرل | | |
| وشتې | ټوكې ټكالي، لطيفې | | |
| وقر(وقار) | طاقت، تحمل، درنښت | | |
| وېلاړ | عزم، اراده، نيت او مراد | | |

| همیانۍ | هغه تېلۍ چي پيسي پکي ابښودل کيږي، کيسه، مضبوطه اراده، په زړه کي يوه خبره غوټه کول | | |
|---|---|---|---|
| هوک | نیغ، شخ | | |
| يرغال | ببېره، يرغل، حمله، بريد | | |
| يسار | کيڼ، اسان | | |
| يمين | ښی | | |

## عبد الرحمان بابا (۱۰۴۲ تر ۱۱۱۸هـجري)

د پښتونخوا د پیښور په علاقه په بهادر کلی کی زیږیدلی دي او د پلار نوم ئی عبدالستارؤ ، قوم ئي که څه هم مومند دي مګر د رحمان بابا مقام له دينه ډير اوچت دي چه دي کومي خاصی قبیلی یا کوم خاص ټبر ته منسوب شي. رحمان بابا هم د ټولو انسانانو دي.

رحمان بابا د پيښور دمهمندو په بهادر کلي کښي زيږيدلی دی. فقه او تصوف له ملا محمد يوسف يوسفزی څخه ولوستل او نور علوم ئي د هغه وخت په هندوستان کي زده کړل. لوی عالم او بزرګ زاهد شو. دی د پيښور په هزار خوانۍ کښي اوسيده. په چشتيه طريقه کښي د خواجه معين الدين چشتي اجميري لاروی ؤ.

په پښتو کښي به ډير داسي کم کور پيدا شي چه د رحمان بابا ديوان هلته نه وي. حتي ځېني مېرمنې د رحمان بابا په اشعارو فال ګوري، ځکه چه دده اشعار له هره لوڅه پاک او سپېڅلي دي.

ښاغلي راور ټی او پادری هیوز (انګریزی مستشرقین)، او اېورن (روسی پښتو پيژندونکی)، رحمان بابا د پښتو د ادب پيشوا بولي. که څه هم پښتانه د پرديو مستشرقينو قضاوت ته څه اړه نه لري، خو بیا هم له دې څخه، د رحمان بابا ادبي منزلت د پرديو په نظر کښي څرګنديږي.

د رحمان بابا مړی د پښتونخوا پيښور د هزار خانې په هديره کښي ښخ دی. د ډېرو هېوادو په دولتي او شخصی موزیمو کي دده دیوانونه شته دي.

# هغه الفاظ چي په (/) سره جلا شوېدي، په هغو کي يواځي **يو** يې ويل کيږي !

**الف**

۱

ګوره هسې کردګار دی رب زما    چه صاحب د کل اختيار  دی رب زما

همګي بزرګواران چه څوك ئي وايئ    تر همه ؤ بزرګوار دی رب زما

نه ئي هيڅ حاجت په چا باندي موقوف دی    نه د هيچا منت بار دی رب زما

له نيستئ ئي  د هستئ صورت پيدا کړ(و)    هسي رنګ پروردګار دی رب زما

هم صانع دی د جمله ؤ مصنوعاتو    هم سامع د هر ګفتار دی رب زما

چه ئي هيچېرې نه مثل نهِ مثال شته    د هغو عطرو عطار دی رب زما

هر  تعمير  چه  د  دنيا  او د عُقبا دی    د همه  واړو  معمار  دی  رب  زما

خوانده د نانويسو صحيفو دی    دانندە  د  هر اسرار دی رب زما

که ظاهر دی که باطن  دی که مابين دی    له همه ؤ خبردار   دی   رب زما

که پيدا که پوشيده دی که اوسط دی    له/په همه ؤ وقوف دار دی رب زما

شريك نه لري په خپلې/خپله پادشاهئ کښي بې شريکه شهريار دی رب زما

هسي/هسې نه چه واحدي ئې ده له عجزه    په واحد وجود بسيار دی رب زما

حاجت نه لري د هيچا و يار ته    له هغو سره چه يار دی رب زما

څه حاجت دی چه و بل خوا ته ئي غواړم    په خپل کور کښي همکنار دی رب زما

هيڅ تغيير و تبديل نه لري رحمانه    تل تر تله بر قرار دی رب زما
٢
که صورت د محمد(ص) نه وای پيدا    پيدا کړې به خدای نه وه دا دنيا

کل جهان د محمد په (مخ)روئ پيدا شه    محمد دی د تمام جهان آبا

نبوت په محمد باندي تمام شه(و)    نشته پس له محمده انبياء

نور هاله د محمد ؤ پيدا شوی/په جهان کښي    چه نه عرش ؤ نه کرسئ وه نه سما

بوی هاله د محمد ؤ په جهان کي چه بوئ نه ؤ د آدم او د حوا

په صورت که/که صورت یې آخرین دی پیدا شوی په معنی کښي اولین دی له/تر/د هر چا

خدای یې مه ګڼه بې شکه چه بنده دی نور ئي کل واړه صفات دي په رښتیا

که نبي دی که ولي دی که عاصي دی محمد دی د همه واړو پیشوا

چه ئي دین د محمد دی قبول کړی جنتي دی که فاسق دی که پارسا

محمد د ګمراهانو رهنما دی محمد دی د ړندو د لاس عصا

که رښا ده پیروي د محمد ده ګڼه نشته په جهان بله رښآ

محمد د بیچاره ؤ چاره ګر دی محمد دی هر دردمند لره دوا

زه رحمان د محمد د در خاکروب یم که مي خدای نه کا له دې دره جُدا

٣

| | |
|---|---|
| دوباره دي راتله نشته په دنيا رښتيا | نن دي وخت/وار دی که دروغ کړې که |
| هره چاره چه تر وقت تيره شي عنقا شي | عنقا نه دی په دام نښتی د هيچا |
| تر ورځ تيرې اوبه بيرته نه جار وزي | نه جار وزي تير ساعت په بيرته بيا |
| تير ساعت په مثال مړی د لحد دی | مړ چا نه دی ژوندی کړی په ژړا |
| که مقصود لرې تلوار کړه وقت کوتاه دی | غره مه شه ددې عمر په بقا |
| هره ښه چه صحيح ګڼې په زړه کښې | په غرور به هغه/دغه ښه کړې خطا |
| په اميد اميد ئې خلق نا اميد کړه/ل | د ايام له مکره مه شه بې پروا |
| چه د مرګ په تماچه دي شي خوله ماته کوی/څه رنګ کړې ثنا | ترو په ماته خوله به څه |
| وير ژړلې ارتينې چه وينا وايي | تا ته وايي که پوهيږې په وينا |
| هلك نه ئي چه په زور دي څوك تعليم کا دانا | هم عاقل يې‌هم بالغ يې هم |
| په عمل د نيک و بدو فهم وکړه | چه په دا کښې دي بهبود دی که په دا |
| سر دننه په ګريوان کړه سترګې روڼې | ډير په پورته پورته مه څه سرهوا |
| سرهوا سرهوا مه څه و آسمان ته | ته په اصل کښې له زمکې يې پيدا |
| د عمل په ځای به دا پوښتنه نه وي | چه ته زوی يې يا نمسی د فلانا |
| په خپل ځان ښيګڼه وکړه غره مه شه | په ښيګڼه د ادې او د بابا |
| هغه ناوې چه په ځان ښايسته نه وي د مور ونيا | څوك بې/يې څه کاندي/کوي ښايست |
| دا خبره زه و ځان ته کړم اې ياره ستا | دلګير مه شه که مې نوم واخيست دا |

نوم د(ا) ستا او د بل اخلم ځان ته وايم نه مي کار نه مي غرض شته په بل/نور چا

هرچي وايم همه واړه ځان ته وايم دا عيبونه دي همه واړه زما

که مي ځای د دې غمونو وای په زړه کښي ما به څه لره کوله دا انشاء

چه د مرگ سخته/ې خوارئېه/ دي/داستا په خوا و/دي اې رحمانه ولي نه مرې لا پخوا

۴

هيڅ ثابته نه کړه چا د دې دنيا وفا واړه مينې کاندي بيهوده په دا دنيا

هر څوک چه دعوی په دا دنيا کا د خپلو واړه باطل وايي دنيا نه ده د هيچا

دا فلک کلال دی سازول او ماتول کا ډيرئي ما و تا غوندي پيدا کړه هم فنا

هر سنگ و کلوخ چه خرگنديږي د دې دهر واړه ککر دي څوک د شاه څوک د گدا

دام دي هيڅوک نه ږدي د دنيا و رهگذر ته ښکار به وکړی نه شي د سيمرغ او دعنقا

هر څوک چه له دې فانی نفس وابستگي کا نه به شي تړلی په زنځير سره هوا

ماه دی که آفتاب دی عاقبت واړه خراب دي گل که هميشه وي هسې نه تر ابدا

مه درومه رحمانه په خلاف د دانايانو مينه د دنيا پسندلې نه ده هيڅ دانا

۵

چي دوې ښځې وي د چا هم سُني وي هم پارسا

خدمت کړونې د څښتن وي په ښه خوي وي اراستا

تفاوت په کي حرام دی که شري وي که خاصا

لازم دادی و څښتن ته تفاوت دي نه کا بيا

په خوراک هم په پوښاک کي که کښه/کنه وي که حدوا

او که دا هسي به نه کا    خپل عمل به کا بیدیا

یو دلې به مجنون ومري    بل هورې به شي روی سیا

دا حدیث دی وارد شوی    که څوک فهم کا په دا

هغه څوک چي تفاوت کا    زه ویزار یم دی له ما

په مشکات کي دي راغلي    ورشه وپوښته علما

رحمان ژغورې یوه خدایه    له عذابه له خطا

۶

ښه ده ښه ده دا دنیا    چه توښه ده د عقبا

مذمت د دنیا مه کړه    واوره پند کړه دا وینا

د دنیا په بازار کیږي    د هغه جهان سودا

په دنیا کښي ډیرحکمت دی    پرې پوهیږي حکما

که غلیم لره ئې ورکړې    غلیم دوست کا په هوا

که تر سر ئې صدقه کړې    رفع دفع کړي بلا

که په اور باندي ئې کیږدې    بوي د عودو (کا)کړي پیدا

که ئې توی کړې په صحرا کښي/تویه په صحرا کړې    ښایسته کاندي صحرا

که ئې نذر کړې و پیر ته    خوشحال درومي په خندا

څو ژوندی وي په دنیا/جهان کي    یادوي دي په دعا

د حاتم په خیر دي ستائي    خطاب در(کا)کړي د سخا

سخی هر یو دوست د خدای دی    وَلَو کانَ فَاسِقًا ۞

هر بخیل د خدای دښمن دی    ولو کانَ زاهِدا

دنیا کښت د آخرت دی    دا خبره ده رښتیا

د دنیا طالبان ډیر دي	که ئې مومي څوک له چا
ولی مرد په کښي/پکې هغه دی	چه سخي وي هم پارسا
په دنیا کښي بدي نسته	که بدي نه وي له تا
په دنیا کښي خطا نشته	که له تا نه وي خطا
دنیا بحر دی بهیري	آئینه/ې غوندي صفا
خپل خپل مخ په کښي/پکې لیده شي	که څوک زشت وي که زیبا
هم خطر په کښي/پکې د سر سته	هم ګوهر دی بې بها
وفا دار لره وفا شوه	جفا کار لره جفا
له یوه مخه ئې درد وي	له بل مخه ئې دوا/جفا
چېرته خوند کاندي د زهرو	چېرته خوند کا د حلوا
کار همه واړه موقوف دی	د سړي په مدعا
سالکان دي نندارچي شي	دخپل ځان په تماشا
هرچه/چي کا هغه به مومي	دنیا ځای دی د جزا
لکه وي هسې به پاځي	که نادان وي که دانا
که دانا ئې ویوهیږه	په روا په ناروا
فتویَ ونیسه په مخ کي	پسې مېټ کړه په تقوا
دنیا نه ده واړه/هغه دین دی	چه له نهې وي سپوا
و طاعت وته ولاړ وي	همیشه تړلې ملا
له حرامو ئې پرهیز وي	مشغول وي/هم مشغول په پنج بنا

کلمه ئې وي قبوله هم په جهر په/هم اِخفا

د دنیا د کار لپاره فرض لمونځ نه کاندي قضا

هم صائم د رمضان وي هم زکات کاندي ادا

که ئې توان د حج رسیږي حج هم وکړي پسې بیا

دا پنځه بنا ددین دي چه بیان ئې (اوکړو)وکړ ما

چه ئې یون په دا طریق وي هغه کس دی اولیآ

که ئې مال ددنیا ډیر دی/وي هیڅ دي نه کاندي پروا

دنیا بده د هغو ده چه ئې کسب وي ریا

یا ئې کسب د ریا وي یا یې وګټي په غلا

یا یې ټوله کا په ظلم یا د خمرو په سودا

یائې ورکا په شرابو یا ئې ورکا په زنا

یا ناحق خونونه کاندي یا مالونه خوري د چا

عبادت (که)کا په ځان فرض د پادشاه د امرا

حق باطل کا باطل حق کا په سبب د روي ریا

نه ئې ویره و/شي له خدایه نه ئې شرم نه حیا

د یوې ګېډې دپاره هزار خونې کا بیدیا

همیشه ئې له ستمه واړه خلق وي په غوغا

ګوش وهوش ئې هرګز نه وي د مظلومو په ژړا

د فرعون په خیر به ناست وي بی پروا و کبریا

بتخانې وته ئې مخ وي و مسجد وته ئې شا

اختلاط کا (د)له بدانو له نېکانو وي سوا/جدا

هيڅ يې نه وي په خاطر کښې تولاْ و تبراْ

و رحمان ته پيښه مه کړې/ه خدايه هسي رنګ بلا!

۷

راشه مه کوه له چا سره جفا لړ ژوندون دی/ې ضايع کيږي بی وفا

په دنيا کښي هيڅوک نه دی/ي پاتي شوني واړه تلوني دي که نن دي که سبا

دا ياران چه نن و تا وته جلوه کا په دوه ورځې پس به واړه شي فنا

که ديدن د دوی دي خوښ وي ورته ګوره چه فنا شي بيا به کله شيې پيدا

د خزان پاڼې چه بيلې شي له ښاخه په حکمت به ئي پيوند نه کا حکما

چه په زمکه څاڅکي پريوزی له آسمانه بيا له زمکې ختی نه شي په سما

ګمان مه کړه چه بيا سترګو لره در/ور شي هغه اوښکې چه له سترګو شي جدا

دا په هره ورځ چه خيژي بيل بيل نمر دی هر چه پريوزي هغه نه شي ختی بيا

که جنت په زهد نه دی بې له فضله هر سړی دي خپله غاړه کړي ادا

که د نفس دپاره سل محنته وکړې يو محنت به دي پکار نه شي فردا

که تمام جهان په خپله ګېډه وخورې ياد به نه شي په درود او په دعا

که يوه دانه د وري په لاس ورکړې هم دغه به دي توښه شي د عقبا

که يو څاڅکی اوبه تږي لره ورکړې د دوږخ او ستا تر مينځ به شی دريا

که يو ځله سر د خدای دپاره ټيټ کړې په قيامت به سر بلند شې له هرچا

بازار دا دی که څوک سود و سودا کاندي په هغه جهان نه سود شته نه سودا

آشنايان که څوک پوهيږي نن ئي وخت دی چه ځاريږي يو آشنا تر بل آشنا

که ژوندون دی خو هم دا دی په جهان کښي چه له چا سره تېريږي په خندا

خدای امان راکړه له هسې زندګئ چه ته بد وايې له بله بل له تا

زهر ښه دی/ي چه په صلح په صلاح وي نه شکرې په فتنه او په غوغا

نس په خاورو په خس ډک ښه دی بې غمه نه د غم په خارو خس پخه حلوا

ماته ملا په مشقت په محنت ښه ده | نه حرامه همیانئ د چا تر ملا
ړوند بهتر دی چه څه نه وینی په سترګو حرام کا وا | نه چه سترګې په پردي
ګونګ بهتر دی چې بې کامه بې زبان وي | نه چې ژبه شي په بد ویل ګویا
کوڼ بهتر دی چه نه اوري په غوږو شنوا | نه چه غوږ کاندي په بد وئیل
دیو او دد که په خوا درشي خو بهتر دي ولي په خوا | خدای دي بد سړی در نه
د جاهل تر همدمیه/ نه به بهتر وي | که له چا سره همدم وي اژدها
که مشکل دي خو د زړونو رغول دي دنیا | سهل کار دی سود او زیان ددې
سود و زیان د دنیا واړه سهل کار دی کار رسوا | خدای دي نه کا څوک په سهل
چه د ورور او عزیز زړه پرې آزار شي | حاصل مه شه هغه خپله مدعا
ګاه د نورو رضا بویه ګاهي خپله | په کار نه ده همیشه خپله رضا
ښه خواړه چه یو ئي خوري بل ورته ګوري | خواړه نه دي هغه زهر دي ګویا
چه ښادی ئي یو زمان وي غم تر تله | دغه هسي چاري نه کاندی دانا
لکه ځان هسي و بل وته نظر کړه هر چا | لکه ستا دی هسي ځان دی د
منصفانو لره بویه چه انصاف کړي/کا | نه چه نغوته کا د حرص و د هوا
دسړی په خاطر هر څه هر څه ګر(ز)ځي | هسي نه چه واړه وګڼي روا
دینداران دي و خپل دین وته نظر کا څوک خطا | څوک فکرونه د صواب (دي)

خدای دي نه کاندي خطا د چا له لاسه ځه نسبت دی د خطا او د عطا

هسی نه چه سړي واړه سره سم دي ځوک اعلی/عالي دی
ځوک اوسط دي ځوک ادنا

د هر چا حرمت په خپله اندازه دی نه چه مومي نفر ځای د امرا

زه رحمان له چا شکوه شکایت نه کړم نشته بل دوست و دښمن
زما بې تا

۸

ته چه ما ته وایې چه په ځه کوې ژړا نه در معلومیږي دغه خپل جور
و جفا

ته جور و جفا کړې زه ژړا کوم دلبره ستا که دغه نه وای/وي دا به
هم نه وای/وي زما

ځه ښادي به کاندي طائفه د عاشقانو رسم د بتانو که هم دا وي لکه
ستا

دا خصلت چه ستا دی که هم تل په دغه شان وي نه را معلومیږي د
دردمندو زړو دوا

یو د ستا ماڼې شه بل غورځی/غرور د رقیبانو وار په وار مي وژني کله
هغه کله دا

هر چه عاشقي کا که په قطع افلاطون وي زه خو ئی مجنون ګڼم که نن
وي که سبا

سپی هم په عذاب د جداۍ د وژلو نه دی زه خو ګوندي ستا د کوځې
سپی شوم په وینا

هیڅ مي په کار نه دي رحمان تا غواړم دلبره دا زما رضا ده باقي هرچې/ځه
ستا رضا

۹

عالمان دي رو ښنائي د دې دنیا عالمان دي د تمام جهان پیشوا

که ځوک لار غواړي وخدای هم و رسول (ته) عالمان دي د دې لارې رهنما

کيميا ګر که د کيميا په طلب ګرزی همدمي د عالمانو ده کيميا

په مجلس د عالمانو به سره زر شي که خوک کاڼی وي که/يا لوټه د صحرا

جاهلان دي په مثال د مردګانو عالمان دي په مثال د مسيحا

چه مرده ئي له نفسه ژوندی کيږي عالمان دي واړه هسي اوليا

هر سړی چه رتبه نه لري د علم سړی نه دی خالي نقش دی ګويا

زه رحمان حلقه بګوش د هر عالِم يم که اعلی دی که اوسط دی که ادنا

۱۰

که خپل زړه غواړې له چا ځان صياد کړه د عنقا

د حباب کلاه په سر کړه سپور په آس شه د هوا

لکه خضر هسي پا څه اوبه وڅښه د بقا

له زمينه قدم کيږده په آسمان لکه عيسی/عيسا

د هغه استاد شاګرد شه چه در و ښيی کيميا

دا چه ما درته بيان کړ ه که حاصل کړې واړه دا

هاله طمع کړ ه رحمانه له خوبانو د وفا

۱۱

دا دنيا ده بې وفا بې وفا ده بې بقا

نه ئي مخ شته نه ئي څټ شته لکه لوټه د صحرا

په يوه ګړ ئي مخ وي په يوه ګړ ئي شا

په يوه ګړ د ستا وي/شي په يوه ګړ زما

په يوه ګړ ئي درد وي په يوه ګړ دوا

په يوه ګړ ئي خوف وي        په يوه ګړ رجا

په ساعت کښي ئي بقا وي        په ساعت کی ئي فنا

په ساعت کښي ئي سکوت وي        په ساعت کي ئي غوغا

په ساعت کښي ئي خندا وي        په ساعت کي ئي ژړا

په ساعت کی ئي وفا وي        په ساعت کي ئي جفا

په ساعت کښي ئي افلاس وي        په ساعت کي ئي غِنا

چه نه شان لري نه شکل        کله دا شي کله دا

خدای ځوک پيښ مه کړه رحمانه        په دا هسي رنګ بلا

۱۲

په ښاد ښاد شوی نه يم د هيچا        تور ټپ شوی يم  په غم د هر آشنا

که زه طمع توقع له بله نه کړم        د بل طمع توقع کيږي له ما

که مي ورور که مي عزيز که مي فرزند/يار دي مدعا        واړه غواړي خپله خپله

په هرکورکي رنځوران راته پراته دي/زګېروی کا دوا        لاس مي نه رسي د  هيچا په

د دنيا خبرې واړه په دنيا شي دنيا        ما به څه کا ځوک چه نه لرم

که په کلي کښي مي کور دی زه ګمان کړم صحرا        چه کور نه دی دا مي ګور دی په

چه څه کار پرېِ نه پوره وي نه نيمګړی خندا        ځوک به څه کا له هغو سره

چه ئي ښه توښه و بله سره نشی آشنا        تر هغه آشنا بهتر دی نا

په توده زمکه استوگنه ده مشکله څه به زیست شي له رحمان سره د چا

۱۳
بادشاهی لري هر یو غلام د ستا د خاصانو په ځای ناست وي عام د ستا

پخته کله وي/دی چه لاف د پخت کا پختگان دي په دې خم کښي خام د ستا

خو هم هُمره ئي نظر په ننگ و نام وي چا چه نه وي اوریدلی نام د ستا

همیشه به له مقامه بې مقام وي هغه څوک چه لټوي مقام د ستا

چه/څو په خپلو وینو گل غوندي غرق نه شي/وي وبه نه ویني رخسار گلفام د ستا

صبح و شام په هغو خلقو باندي یو وي چه آرزو لري هر صبح و شام د ستا

بل کلام ئي په زړه کله اثر کاندي چه تر غوږ ئي شي شیرین کلام د ستا

فراموش کاندي همه نورې مست هر چه/چي نوش کاندي باده په جام د ستا

دام د ستا د تورو زلفو عالم گیر دی تنها نه یم نښتی زه په دام د ستا

زه رحمان دعا سلام په هغو وایم هر چه ما لره راوړي سلام د ستا

۱۴
هر چه ویني په سترگو روی د ستا مخ ئي کوږ وي همیشه په سوی د ستا

بې دماغه په تر سر و تر ماله تېر شي چه یې تیر شي تر دماغه بوی د ستا

که لوئي کړې څه بې ځایه خو ئي نه کړې چه په دا رنگه قامت دی لوی د ستا

نو بهار شو/دی عالم سیر د بوستان کا(ندي) خدای و ما وته بوستان کړ کوی د ستا

د عیسی له دمه دم وهلی نشم ستا | چه خوله بیرته شي په گفت و ګوی د ستا

هم په دا مي له چشمانو نو/رود بهیږی | چه یادیږي مي قامت دلجوی د ستا

همیشه ئي زړه اور باندي سپند وي ستا | و هغه/هغو ته چه ځرګند شي خوی د ستا

د لړم لاشه ئي ما ته وي په زړه کښي د ستا | چه ئي نقش وي په زړه ابروی

و زنځیر وته ئی څه لره را کاږې | لیونیو لره بس وي/دی موی د ستا

و ګړنګ وته پخپله ځان پرې باسي ستا | چه و زړه وته پرې باسي روئ د

که ته سل ځله زما ئي زه د ستا یم ستا | تلوني نه دي له ما جست و جوی د

ګل لنبه/لمبه شه/شو د بلبل په آه رحمانه! د ستا | نه ګروهیږي یار په های و هوی

۱۵

خوی که په دا شان وي دل آزار ستا ستا | څه ښادي به کاندي طلبګار

حیف چه اوریده شي لیدی نه شي | حسن و لطافت دی پرېوار ستا

بیا دوباره نه ګوري و بل ته | هر چا چه لیدلی وی رخسار ستا

خدای زده چه ته یار د کوم یوه ئي | هر طرف یاران دي صد هزار ستا

ځای د ښوایښودو مونده نه شي | همره عاشقان دي په دربار ستا

بل به هسي نه وي که خدای کاندي | ما غوندي خاکسار و هوادار ستا

بل ګمان په ما باندي ومه کړه | عمر واړه زه او انتظار ستا

عشق له حسنه حسن دی له عشقه ته نگار زما يې زه نگار ستا

ته زما مطلوب يې زه طالب يم ته زما طبيبـ يې زه بيمار ستا

ته که تازه گل د نو بهار يې زه يم عندليب په لاله زار ستا

جور دی که جفا ده که ستم دی واړه مې منلي دي يک بار ستا

جور و جفا څوک په بها پلوري زه يم د جورونو خريدار ستا

يو تار که ضايع شي ستا د زلفو ځان به صدقه کړم تر هر تار ستا

سل ازمېښتونه دي را وکړه حيف دی چه لا نه شي اعتبار ستا

تير يم زه رحمان له هره کاره اوس مي ملا تړلې ده په کار ستا

۱۶

که څوک يار په جهان غواړي يار دی دا يار دی دا که د جهان سنگار دی دا؟

خيال د زلفو ئي زما تر زړه چاپير شه/شويا تر گنجه چاپير شوی مار دی دا؟

دا جهان دی خدای له عشقه پيدا کړی د جمله ؤ مخلوقاتو پلار دی دا

تر عشق واړې/غوره بل کار په جهان نشته تر همه کارونو واړې/غوره کاردی دا

بل بلبل به د گل نوم اخيستی نه وو که خبر وی چه گل نه دی خار دی دا

بيا راتله دي دې جهان ته بل وار نشته بل وار نشته بل وار نشته وار دی دا

د حباب عمر دي وگوري چه څو دی دی دا که څوک شمار کاندي د عمر شمار

د مجنون صورت په زړه کړه رحمان گوره دی دا ستا په عشق کښي هسي خوار و زار

۱۷

چه له تا سره په سر کاندي سودا شيدا بل به نه وی هسي ما غوندی

نه به ما غوندي شيدا وي په جهان کښي نه به تا غوندي دلبر شي بل پيدا

ما دا ستا جور و جفا دي قبول کړي ولي نشي د ژړا په ځای خندا

بې د ستا له مخه کون دی که مکان دی په دا ښه توښه مي نه په دا شي نه

جدائي به دي هيڅ رنګ قبوله نه کړم څو مي نه دی روح کالبوت سره جدا

لکه ورستو مقتديان وړاندي امام وي ما په تا پسې ده کړې اقتدا

زه يې وينم/يو نه يم درست جهان په تا مين دی که بادشاه دی ددې دهر که ګدا

کاشکې خط د اماني و ما له را کړې چه له ما سره وعده کړې د فردا

زه پخپله په تا نه يم مين شوی ستا له لورې په ما شوې ده ندا

زه په تا باندي مين يم له ازله نه چه کړې مې نن ورځ ده ابتدا

چه د ستا د عاشق په تيغ شهيد شي د رحمان غاړه به هالله شي ادا

د رحمان و زيړي رنګ وته نظر کړه چه مدام په تا پسې کاندي ژړا

۱۸

هسی نه چه زما يار واړه جفا کا صد چندان لکه جفا همره وفا کا

لکه زه چه په خپل يار باندي مئين يم يو په سله همره مينه يار په ما کا

زړه ئي وړی په احسان دی نه په جور مجنون څکه په ليلی پسي ژړا کا

درست جهان د خوبرويانو ناز بردار دی نه يوازي دغه ناز په ما و تا کا

نه به ګوري رحمان څه شکل هغه مخ ته فرښتې چه ئي د حسن تماشا کا

۱۹

هر چه ستا کوڅه ماوا کا ځای ئي بر شي تر افلا کا

ځان هاله ورته بادشاه شي چه ئي ستا د در ګدا کا

چه د ستا د در ګدا شي بادشاه وته نور شا کا

نظر بې د ستا له رويه نه په ارض نه په سما کا

مینه بې د ستا له مخه		نه په دین نه په دنیا کا

ستا په مهر و محبتۀ کښي		ځان جهان واړه فنا کا

د دنیا کور و وګړي		ستا په مینه کښي تالا کا

رضا ستا په رضا کیږدي  ترکه خپله مدعا کا

و هر خوا ته چه ستا مخ شي   دی هم مخ په هغه خوا کا

چه له چا سره جفا کړې له هغه سره جفا کا

که له چا سره وفا کړې		له هغه سره وفا کا

که په عمر چیري خاندي خو له تا سره خندا کا

که په عمر چیري ژاړي   خو په تا پسې ژړا کا

که مطلب ئي د دیدار وي		ستا د حسن تماشا کا

که مطلب ئې د ګفتار وي		ستا په ذکر مشغولا کا

د ر ښتینو مقام دا دی		که څوک مینه په رښتیا کا

عاشقان په عاشق کښي		چه رحمان وائې هم دا کا

۲۰

چه امید په عمارت د دې دنیا کا		د کاغذ په  کشت سیر د دریا کا

د آسمان توسن هیچا نه دی تېزلی کا		څوک به څه رنګه سورلي د باد په شا

نه لیوه په آدمیت آموخته کېږي		نه امید د مروت شي له افلا کا

له فلکه د وفا امید باطل دی		کله دیو له آدم زاد سره وفا کا

زمانه په اسلام کفر سمه ګرز/ځي		فرق د تور و د سپن کله نابینا کا

ما د دهر علامت په سترګو ولید		په هر دم هزار پیدا هزار فنا کا

هيڅ اميد مي د ايام په ګردش نه شي چه فرصت به په خپل دور وما را کا

په خپل عمر به هيچا ليدلې نه وي کا هغه چارې چه دی هر ساعت په ما

که د ګلو غنچه کېږدم په دستار کښي شوم طالع مي هلته خار ځني پيدا کا

که و زرو وته لاس کړم خاورې کېږي که د خاورو په آرزو شم استغنا کا

جدائي د خدای بلا شوه نه توانيږم خوشی زړه مي په ديدن پسی ژړا کا

هومره صبر دی عاشق سره/څخه له کومه چه د نن وعده موقوفه په فردا کا

که د اور جامه را واغوندې دلبره په نظر زما جلوه لکه ديبا کا

په خپل عشق کښي که څوک بد را باندي وايي زه ګمان کړم چه همه زما ثنا کا

ملامت په عاشق ښائي دا دستور دی چه روغ خلق په رنځور پوري خندا کا

عاشقي ننګ و ناموس دي وبله لري کا په روښانه ورځ به څه رنګه څوک غلا

که زه طمع کړم د ګلو له طالع نه کا ما عاجز لره د ګل په ځای خار را

که زه ځان ژغورم په عشق کښي له عالمه زمانه مي په جهان باندي رسوا کا

هميشه به په عالم کښي وي سرخ رويه چه ثنا لکه بلبل د خپل آشنا کا

دا ځواب رحمان هغه کا چه دولت وي که دلبر د ديدن مي پياپی را کا
٢١
هغه ژوی چه مين وي څه به خوب کاچه مجنون غوندي کړمن/فرهاد غوندي کوهکن وي څه به خوب کا

هر نفس د سړي تله دي له جهانه کا چه ئي هر نفس رفتن وي څه به خوب

چه سبا له خپله ياره جدا کېږي کا که د سلو شپو کړمن وي څه به خوب

عاشقي ده خدای له اوره پیدا کړې         چه په اور کښي ئي وطن وي څه به خوب کا

د اوبو تږی هم خوب کولی نه شي         څوک چي تږی دديدن وي څه به خوب کا

د رقيب له جوره خوب د عاشق نه شي         د هغو چه ديو د ښمن وي څه به خوب کا

د مجاز بندي خو خوب کولی نشي         چي يې زلفې طوق رسن وي څه به خوب کا

خوب خندا له بې غم شي/کيږي رحمانه  څوک چي/هر چه تا په خير/غوندي غمجن وي څه به خوب کا

٢٢

چه په سترګو کښي ئي خار وي څه به خوب کا     چه په زړه ئي غم د يار وي څه به خوب کا

خوب له ياره سره هم د عاشق نه شي     چه ئي يار په بل ديار وي څه به خوب کا

په دنيا  کښي خوب هغه کا چه نادان وي     هغه ژوی چه هو ښيار وي څه به خوب کا

کوم طالب مطلوب موندلی دی په خوب کښي     هغه څوک چه طلبګار وي څه به خوب کا

ديدار نه دی چا په پټو سترګو کړی     چه مطلب د چا ديدار وي څه به خوب کا

بله لار  د مرګ تر/له لارې ګرانه نشته!     چه په خوا ئي هسي لار وي څه به خوب کا

هر نګاه د دلبرانو ذوالفقار دی     هر چه غوڅ په ذوالفقار وي څه به خوب کا

د لېرم چېچلی/خوړلی خوب کولی نشي     چي خوړلی تور ښامار وي څه به خوب کا

زه رحمان د يار بنده هم/و خدمتگار يم خوب کا | چه بنده او خدمتگار وي څه به
٢٣
هغه ژوی/ي چه بې خدايه محبت کا | همګي واړه بې ځايه محبت کا

محبت بې خدايه واړه د زړه رنځ دی | که مدام له چنګ و نايه محبت کا

خرخاري ده چه ئي يو ځبله/له بله کاندي | هر خودرای چه له خودرايه محبت کا

نتيجه ئي ريش کنده جامه پاره وي | آدم زاد چه له چارپايه محبت کا

هغه سرای لره به تله ور باندي ګران وي | هر سړی چه له دې سرايه محبت کا

بوالهوس/بلهوس به نه پتنګ نه پروانه شی | د مګس په څير له ورايه محبت کا

چه د تورو زلفو سيوری په چا وشي | هغه کله له همايه محبت کا

رحمان څکه د ربيار متابعت کا/کړم | چه رهروله رهنمايه محبت کا
٢۴
اورنګ زيب چه آرايش د تخت و تاج کا | تخت و تاج به ئي مرګی تاخت و تاراج کا

به جهان کښي به ئي پاتي ښه بد نوم شي حجاج کا | دی که چارې د کسری او/که د

اوبه سترګو لره لاړې اور د زړه شه/و مزاج کا | څوک به څه شکله ژوندون په دا

جدائي زما په زړه کا هسي چاري | لکه باز چه په تارو او په دراج کا

زما اوښکي چه پيدا د زړه له يم/زيم شوې | لکه اور يې/چه له کبابه نم اخراج کا

زه غمجن د عيد په جشن خبر نه شوم نه احتياج کا | که نور خلق های و هوئ/هوی وهای

هر ناوک چه د قضا له شسته خيژي | زمانه د رحمان زړه ورته آماج کا
٢۵
د بې دردو همدمي به دي بې درد کا | د نامردو همدمي به دي نامرد کا

صحبت  بې تاثيره  نه دی دا حديث دی          کنګونمري هم په خير د ګنګو زرد کا

هر کالی چه څوک په زمکه باندي کېږدي          هغه زمکه ئي له جنسه د خپل ګرد کا

په مجلس د ويرژړليو څوک ور مه شه سرد کا          که صحيح و/که سلامت وي آه (يې)

چه دويي له ميانه لري شي رحمانه کا          معشوقه/قې عاشق پخپله ناز پرورد

۲۶

که په ګنج د شاهي فخر شهريار کا          عاشقان ئي د دلبرو په رخسار کا

خرقه پوشو په خرقه  کښي  دی  موندلی دنيا دار کا          هغه حظ  چه  په  دنيا  کښي

پتنګانو لره ورکړ خدای په اور کښي!          هغه عيش چه ئي بلبله په ګلزار کا

نيک ساعت په بد بدل د هيچا مه شه          په وصال کي‌غم دهجر وردوخار کا

نس د ګور او دمور يو دی په معنی کښي کا          خو په  چا  ئي  تور  لحد  په چا بازار

د بېړ په ډوبيدو چه رب/خدای راضي شي کا          يګانګي/بيا ملاح د زړونو کله هلته کار

هغه  مخ چه مادر زاد ښايسته نه وي          مشقت د مشاطې واړه مردار کا

يار د ناز له  خوبه  پاځي پسې ګرزي          چه فلک د عاشقانو بخت بيدار کا

بې له تانه مدام سوزي داېې حال دی          لکه شمع چي څوک بله په مزار کا

نيمي شپې ئي يار تر سره پوري کښيني کا          لکه شمع چه څوک بله په مزار

د مست د هو ښيار يون څرګند وي رفتار کا          په هرچا کي چه څه وي هغه/هسي

د بلبلو نغمه زاغ کولای نه شي          هر سرود آواز په طور د خپل تار کا

رحمان هسې بې وقوف سوداګر نه دی | چه د دين متاع بدله په دينار کا
٢٧
هر ګفتار هره ويناچي ځوک عبس کا | تر عبس ويل دا به ده چي يې بس کا

په هغې وينا چي وروسته پښېمانېږي | له اوله دي خوله هسکه (له نفس) کا

هره چار چي له اختياره وي وتلې کا | بېهوده به يې ځوک لاف د دست ورس

فقيري د خدای په مهر مونده کيږي | دا هنر په کبر نه شي چي يې نس کا

آدم زاد په معنی واړه يو وجود دی کا | يو وجود دی هم يې پاک هم يې نجس

که يې اصل يو وجود دی (په دې) څه شو | دګلونو هنر کله خارو خس کا

په اخلاص د نماز ګذارو دی جنوب دی کا | هر نماز يې چي (په) ريا تيمم اودس

معتقد له اعتقاده مقصود بيا موند وسوس کا | د هغو طاعت غلط دی چي

که خود بين وي ته يې څه کوې رحمانه | د خود بينو سزا خپله خودي بس کا
٢٨
دلربا که د خپل حسن مخ عيان کا | ډېر بې غمه جمع زړونه به لړزان کا

په کشور د صابرانو به قيامت شي | اسرافيل غوندي آواز به هر نالان کا

چي يې چا جام د لعلو وي نوشلی | پېمانه چغلګيري په دا نادان کا

د جبين په چين يې هسي رنګ پوهيږم | چي محراب به د ګايلو زړونه وران کا

د پرېشان ګيسو دليل يې عين دادی کا | چي وابست زړونه په دا رنګ پرېشان

که جلوه يې د جمال شي معينه کا | په شعله به لمر، سپوږم سوي نانان

که د باد ګذر(يې) وشي و خاکپای ته | د ړندو سترګو دارو به خدای اسان کا

که شانه په تورو زلفو باندي کیږدي    مښک عنبر (به) د یوې بیسې ډېران کا

توري زلفي یې هم مښک دی هم عنبر دی کا    خو زما له کم بخت (یې) خدای ماران

که پلو له مخه لیري که رحمانه    په دیدن به هندوان واړه مسلمان کا

۲۹

زما اوښکې چه دا هسي شست و شو کا    دا محنت واړه زما د مخ په ولو/آبرو کا

تل ئي مخ وي تر خوبانو پوري وللی    عاشقي چه د چا اوښکې په شیبو کا

د عاشق د سینې چاک به ور څرگند شي    که څوک سر و خپل گریوان وته فرو کا

د عشق اور چه شمع خود په سر قبول کړي    پروانه به څه حجت د ځان په سوو کا

گل څه نه وایي چه غرق په وینو ناست وي    بلبل څه لره بې ځایه گفتگو کا

زه که مرگ غواړم بې یاره گرم خو نه یم    جدائي سړی په ځان پوري په‌کو کا

معشوقې په محنت نه دي چا موندلې کا    مگر خدای ئي په رحمان باندي پېرزو

۳۰

ورځ چه بده شي عاقل او دانا څه کا    چه قضا شي ور دوڅاره حکما څه کا

مور و پلار خو نیک فرزند له خدایه غواړي    چه بد بخت شي ادې څه کا بابا څه کا

یار له یاره په لوی لاس کله بېلېږي کا    چه لاس نه رسي یار څه کا آشنا څه

په ښیرو په دعاڅه شي کړونی خدای دی کا    چه خدای نه کا ښیرې څه کا دعا څه

بخت په زور و په زر نه دی چا خپل کړی کا    په دا کار کښې ناتوان څه کا توانا څه

ای رحمانه پتنګ عذر/ولي (شؤ)شه چه و(سو)سه نور د شمعې خندا څه کا ژړا څه کا
۳۱

څو یو ځله ئي تاراج په جفا نه کا یار له یاره سره مهر و وفا نه کا

که ئي سر په بوسه ورکړم زه پوهیږم چه قبول به دغه عجز زما نه کا

چه په خپله رضا تللي مادر زاد وي هغه هیچري د نورو رضا نه کا

څو ئي خپله مدعا حاصله نه شي/وي مهرویان په خوله د خضر سودا نه کا

که ئي سل ځله دعا کوم په عمر نه کا ګوش و هوش د دعاګوی په دعا

که آهونه آتشین پسې وکاږم لکه سروه له خزانه پروا نه کا

که آرام غواړي رحمان په عاشق کښي دغه/دا خو واړه ناروا کا ناروا نه کا
۳۲

زړه مي بې خپله نګاره آرام نه کا کامراني را څخه غواړي ناکام نه کا

بې ناکامه زیست محال دی په دنیا کښي نه کا د کوم آس په خوله کښي دخل لګام

د آسمان ماښ به هم په قرار نه وي سالک ځکه قصد د قصر و د بام نه کا

ګاه ئي کښېنوي په تخت کله په خاورو زمانه رضا د هیچا مدام نه کا

بې له سروې چه آزاده خدای پیدا کړه ترکې ځکه و هیچا ته سلام نه کا

کوه و دشت هم د خزان له غمه ریږردي ځکه زرکه و چمن ته خرام نه کا

چا چه سر دی په سجده ویار ته ایښی دوباره له دې سجوده قیام نه کا

چه ئي کړه ده یار په لوري لوښتې لکه بحر هسي درومي مقام نه کا

نشستن د عاشق نشته لکه شمعه کښي تمام نه کا څو صورت د عشق په اور

چه محظوظ وي په تش بوي د مهرویانو هغه فکر د بوسې د پیغام نه کا

چه لذت ئی د سرو شنډو وي موندلی نوره مینه د شرابو په جام نه کا

په هغو د لعلو لبو می حرام دی څو دا نور لذت په خپل سر/خپسر حرام نه کا

رحمان هسې و خپل یار ته بې حجت دی لکه عذر چه صاحب ته غلام نه کا

۳۳

چه امید په عمارت د د ې جهان کا لکه کرښه په اوبو هسي نشان کا

د اوبو په مخ د کرښې بقا نشته په نابود باندي ناحق د بود ګمان کا

نادانانو هسي دین په دنیا بایلود لکه اوړکی دُر بدل په پارچه نان کا

د دنیا و دین نسبت وبلته نه شي اور اوبو سره استوګنه په څه شان کا

عشق د نفس له خاصیته منزه دی کار د سترګو به څوک خنګه په دهان کا

لکه چشم و ګوش په کار کي وبله بیل وي/دي هسي دین و دنیا حکم ځان په ځان کا

په پیر کي د ځوانیه خیال دی هسي لکه څوک چه د باغ سیر په خزان کا

بې درګاهه ئي بل ځای د رحمان نشته په سفر استوګنه څو مسافران کا

۳۴

عاشقان د ناصحانو وینا نه کا مست هاتي د مهوتا نو پروا نه کا

واړه جور د دې دهر/دور مي قبول دی که خدای ما له خپله یاره جدا نه کا

چه د ګلو پریشان شوه ور څرګنده غُنچې سر په زانو کښېښود خندا نه کا

و سیلاب ته د ډنډوکي څه اِستاد وی زړه چه ژاړي سترګې څه رنګ ژړا نه کا

دنیا کل په احمقانو ده ودانه دانا ځکه وابستګي د دنیا نه کا

چه ئي زړه دی/وي په هوا پوري تړلی　　د حباب عمارت ځکه بقا نه کا

بې هنر دی چه څوک دین په دنیا پلوري کا　　هنرمند سړی دا هسي سودا نه

که څوک وائي هوښیار کوم دی وایه دادی　　چه بې خدایه نوره مینه په چا نه کا

ګدائي که ورپیښیږي دا بی ځای دی　　هر بادشاه چه دلجوئي د ګدا نه کا

چه بیدل ئي په یوه نګاه رغیږي کا　　څه انصاف دی چه دلبر ئي دوا نه

هر چه زړه ئي وي په یار باندي بایلودی کا　　نوره مینه په چا بې له آشنا نه

چه تر غوږ ئي وي وینا د آشنا شوې　　هغه غوږ هر ګز په نوره وینا نه کا

و به نه رسي د یار تر بلند بامه　　چه د زړه غولی روشن په ژړا نه کا

زه رحمان د هغه یار په جفا/ژړا خوښ یم کا　　که اغیار مي خدای له میانه پیدا نه

۳۵

که سړی د خپلې پوهې تقصیر نه کا　　د خدای کړه به څوک په پوهه تغییر نه

خواه مخواه به د تقدیر شوي ور پیښ شي کا　　که څوک هیچري نظر په تقدیر نه

د هغو چه بخت بیدار شو غم ئي نشته　　که هیچري بیداري و شبګیر نه کا

دا له خپلې کم فهم موږه/فهمیه مور څه وایو کا　　چه فلانی سړی تلاش و تدبیر نه

دلګیري او خوشحالي که په خپل لاس وي/وای هیڅوک دلګیر نه کا　　په خپل لاس به خپلسر/خپسر

معرفت د خدای څرګند دی په هر څه کښي نه کا　　سترګي وخوره چه څوک همره نظیر

دا نفس په مثال برق صورت فانوس دی اسیر نه کا | برق به هيڅوک په فانوس کښي

د دنيا سړي همه واړه درماند دي | کوم بادشاه دی چه منت د وزير نه کا

کوم واده کومه کوژدن ده په جهان کښي کا | چه فلک ئي و آخر وته په وير نه

په خوله هر يو سړی اسم د پير اخلي | باري څه پکار چه نغوته د پير نه کا

دغه ښځښي د قيامت نه دي نور څه دي | چه د پلار ويل په زويو تاثير نه کا

هسي چارې له ناصحو واقع کېږي | چه له شرمه ئي هيڅ غل وکاسير نه کا

په مرده پسې تکبير وکا روان شي | څوک ګمان په ځان د هسي تکبير نه کا

په دنيا پسې درست عمر زهيريږي | ځان يو دم د خدای دپاره زهير نه کا

دعيال دپاره تير تر سر و مال شي | دل جوئي په يوه ټوک د فقير نه کا

رحمان ګرم دی چه نارې د هجران اوري | و آشنا وته کاته په ځير نه کا

۳۴

تر حده تېره/ډېره شوه په يار پسې ژړا زما | نه ګروهيږي په ژړا سره آشنا زما

که مي هره وينا دُر يا مرغلر شي | لا دغوږ لايقه نه ګڼي وينا زما

په نارو به ما بيدار کړ که اوده وی | باري ويښ راته اوده شو دلربا زما

زه مکتوب غوندي په پټه خوله ګويا يم | خاموشي زما تېرى کا تر غوغا زما

کښت د عشق په توده ځمکه آسان نه دی صحرا زما | سمندر بويه چي زيست کا په

دا يار نه دی چي هجران له مانه بېل کړ زما | روح زما دی چي له تنه دی جدا

زه رحمان بې خپله ياره هېڅ نه غواړم | که قبوله وي د خدای په در دعا زما

۳۷

سل ځله که وخوري ناصحان ځيګر زما بيل به ځبله/وبله نه کا درد ستا او سر زما

صبرستا په عشق کښي داخبره څوک/څه او زه څوک نشته د دې چارې توان يو موي قدر زما

ستا له محبته جاروانه وماته عاردي/زما دروغ دي ولي خاورې نه شي په دا لار بشر زما

واړه معشوقې د عاشقانو خبر اخلي بې له تا چه نه اخلې يو دم خبر زما

هيڅ اندوه مي نشته بې د ستا له جدائي نور اندوه به څه وي تر دغه بتر زما

خوب د کورو کلي په نارو زما برهم شؤ څه چل دى چه نه شي ستا په زړه اثر زما

درست جهان که ما رحمان لره دلبر شي چيرې دى دلبره بې تا بل دلبر زما

۳۸

هسي ياد يې هميشه مدام زما چه اوراد يې په هر صبح و شام زما

هر کلام چه بې دا ستا له ياده وکړم سل توبې دي په هغه کلام زما

بې له تا که زړه آرام کړم په سل رنګه نه شي نه شي په هيڅ رنګ آرام زما

ننګ و نام که ستا په مينه له ما درومي زار شه ستا تر ميني ننګ و نام زما

چه قايم شوم په مقام د عاشق هير شو دلته واړه بل مقام زما

څو د عشق په خُمخانه مي/ئي داخل نه کړ/کړم پخته نه شو/دى دغه عقل خام زما

نن دي وقت دى که مي آه و فرياد اوري څو چه خاورې نه دى هر اندام زما

هزار جام و صراحي دې فلک مات کړه　　ځو به ګرزي په دا دور جام زما

زه رحمان به دا ناکام کوم تر کومه　　وایه کله به حاصل کړې/شي کام زما
۳۹
چه هر چا لیدلی نه وي یار زما　　خیر دی دا که وایی بد په کار زما

هر هغه چه وي دلبر زما لیدلی　　نه به کا انشاءالله انکار زما

سر زما درګاه د هغه یار عزیز وي　　بې له دې لار/نه نشته بله لار زما

ما بې‌عشقه بل څه څیز نه دي زده کړي　　چه څه دی همدا دی واړه کار زما

خدای دي هیڅوک یو ځبله/له بله آزار نه کا ای دلبره مه اخله ته آزار زما

یاره ستا په جدای او په ډیرغم کښي　　سیند د اوښکو درومي په رخسار زما

لوی دی که هلک دی همه واړه ستا خبري کاندي　　بل ګفت وګوی نشته په دیار زما

زه رحمان به لاف په عشق کي څه وهمه　　خود به ځان څرګند کا انتظار زما
۴۰
تېر شو په دا طمع په درستا عمر زما　　ګوندي چیري کیږدي یو قدم په سر زما

تا وې چي د عشق پیاله خوره ده تر شکرو زما　　وسو په هجران کي دې پیالې ځیګر زما

سل جفا که ووینم په سترګو ستا له لاسه زما　　ستا په جفا نه کیږي هرګز باور زما

یا له ما رحمان سره جفا مه کړه دلبره　　یا بې تا راوښیه یو بل دلبر زما
۴۱
سرزما سامان زما ز/ځار شه تر جانان زما　　ځار شه تر جانان زما سر زما سامان زما

زیان زما نقصان زما واړه د یار هجر دی زما　　واړه د یار هجر دی زیار زما نقصان

مښک زما زعفران زما ستا د کوڅې خاورې دي ستا د کوڅې خاورې دي مښک زما زعفران زما

گل زما ريحان زما ستا رخسار و زلفې دي ستا رخسار و زلفی دی گل زما ريحان زما

فکر زما توان زما ستا په غم کښي نه رسي ستا په غم کښي نه رسي فکر زما توان زما

آه زما افغان زما هيڅ په تا اثر نه کا هيڅ په تا اثر نه کا آه زما افغان زما

زړه زما چشمان زما بې تا هيڅ حال نه لري بې تا هيڅ حال نه لري زړه زما چشمان زما

دا پيران شيخان زما ستا په غم کښي نه رسي ستا په غم کښي نه رسي دا پيران شيخان زما

باغ زما بوستان زما بې تا ميوه نه نيسي بې تا ميوه نه نيسي باغ زما بوستان زما

وصل هم هجران زما اې رحمانه خير دی اې رحمانه خير دی وصل هم هجران زما

۴۲

ستا په څير نه دي خوبان ليدلي ما نه په غورو چيرې اوريدلي ما

هيڅ وفا له عاشقانو سره نه کا دلبران دي واړه ازمايلي ما

چه مي ستا و ښکلي مخ ته دي کتلي بل يو مخ ته نه دي بيا کتلي ما

د زړه غولی مي نيولی ستا غمونو نور غمونه دي له زړه ويستلي ما

چه مي کار د عاشق په لاس کښي واخيست دي له بله کاره لاس وکښلي ما

نور غمونه مي له زړه نه دي وتلي ستا غمونه په کښي دي کرلي ما

که جفا کوې که جور واړه ځای لري د ستا جور وجفا واړه دي منلي ما

زه رحمان بې ياره خوب و خندا نه کړم بې ده نه دي خوب خندا پسندلي ما

تر ابده به يې برخه ملالي وي له هغو چي زړه ملال شي د اشنا

ځو به جفا کړې نه پوهېږم څه بلا شوه بلا ځو به وي تر کومه دا جفا او دا

که يې مال د دنيا ډېر وي هيڅ بري نه کاندي پروا

۴۳

چه واده ئي کا په ډول او په سرنا بيا پرې وايي زمانه د وير وينا

که مي هر ځو دلبري او دلجوئي کا زه پوهيږم د خپل يار په استغنا

په يوه گړ مى يار هم مي آشنا شي بيا مي بله گړ نه گڼي آشنا

دا زه خپله تسلي کړم يار ئي/کوم يار بولم څه ياري ده د ناتوان او د توانا

يو زمان يو دم او بې خپله صنمه زه بهتره تر بقا گڼم فنا

هر سړی په يوې چارې خدای مشغول کړ زه مشغول کړم خدای/رب د ترکو په ثنا

ما بې عشقه بل هنر نه زده ناصحه که دانا بخښنده/په خندا شه که نادان يم/يې

چه مي غوږ په نارو نه باسي حيران يم پروا نه لري که ووړ وي که برنا

بې د يار له ښه ديدنه دي خدای نه کا د رحمان په زړه کښې بله تمنا

۴۴

چه ئي نقش په زړه خيال شي د آشنا صدقه ئي سر و مال شي د آشنا

پس له مرگه به ئي تيغ هسي مخ روڼ وي چه آشنا په تيغ حلال شي د آشنا

په آسمان د آشنايۍ به ئي مکان وي چه زمين غوندي پايمال شي د آشنا

خوشحالي زما د زړه په هغه دم وي آشنا په هر دم چه زړه خوشحال شي د

روح هغه ساعت داخل ګڼم په تن کښي آشنا | چه مي دخل په وصال شي د
---|---
هم هغه یوه ګړ را باندي کال وي | چه یوه ګړ محال شي د آشنا
نور د هیچا قیل و قال مې پکار نه وي | چه تر غوږ مي قیل و قال شي د آشنا
زړغونه کاندي دانه زما د عیش د آشنا | چه په زړه مي زرغون خیال/خال شي
نه بل څوک زما طبیب بې آشنا شته دی اشنا | نه بل څوک به په مثال شي د
د رحمان نظر په هیچا باندي نه وي | چه نظر ئي په جمال شي د آشنا

۴۵

که ماښام تر ستوني ښکته کړې حلوا | سبا خواست کوې له خدایه د ښوروا
په هیڅ حال کښي دي قرار و صبرنه شي | لیونی کړې ډیر حرص ډیرې هوا
تمام عمر تر یار/آشنا تر عزیز پورې رسوا | لوېې/یوې ګیډې مختورن کړې هم
چه په خپلې رسوای دي پروا نه شي | نور به څه کړې په جهان د چا پروا
چه د نفس دپاره لاس و خدای ته نیسې دوا | دا زحمت له خدایه غواړې که
نفس بې شماره عالم پرې یوست و کوهي ته | خدای دي نه کا نابینا د چا پیشوا
په روا په ناروا کله پوهیږي | و چارپای ته څه روا څه ناروا
چارپایان که غوږ و سترګې لري څه شو | په معنی کښي نابینا دي ناشنوا
زه رحمان له هغه علمه پناه غواړم | چه له دینه له مذهبه وي سیوا

۴۶

دل و دین مې هغې ترکې کړل رها/په هغه تُرک کړه فدا | لا ئي نه حساَبوي د ځان بها
د ښایست صفت ئي څو کوم حیران یم شي انتها | په هیڅ شان ئي موندی/ه نه

د صورت له عیبه هسي پاکیزه دی لکه ذات د ويښته نشته دی په ها

که ئي مخ په زلفو پټ وي باک ئي نشته تل به ګنج باندي پراته وي اژدها

لکه نمر هسي جلوه کا په شفق کي چه په سر کاندي اودنۍ/نړی د سوها

نه پوهيږم چه په کومه لاره درومم چپ و راست مي رقيبان دي هزارها

خدای دي هسی تنها نه کا څوک په غم کښي لکه زه یم ستا په غم کښي یک//د یار په غم کښي یم تنها

هميشه د بيلتانه په غم کښي/له غمه لولم زه رحمان نَعُوذُ بِااللهِ مِنها

۴۷

که مين يې په خپل يار باندي رښتيا آواره کړه اول دين، پسې دنيا

په وفا د دلبرانو غلط مه شه ! دغه قوم دی بې وفا و کبريا

د خوبانو طايفه ده هسي شوخه چه غور نه باسي د چا په واويلا

د ډير ناز او د ډير کبر له سببه عمل نه کا په ګفتار د اوليا

دل و دين په نيم/يو نګاه د سړي يوسي نه يې ويره له چا کيږي نه حيا

بل به هسي سرګردان په جهان نه وي يا عاشق دی يا آسمان دی يا آسيا

ته چه ژغورې سر و مال په عاشق کښي ويړيا عاشقي دا هسي چَري(چيرې) وي

د جنت له حورو تېر شه که يار غواړې خدای دي نقد د چا و نه کاندي نسيا

د ساقی له لاسه هسي پياله نوش کړه ريا چي دي غوځ کا د زړه خيرې د

چه ئي کسب عاشقي شي د دلبرو نظر نه کاندي په کسب د کيميا

يو ګفتار ورلره بس کاندي رحمانه څه به هر ساعت پو ښتنه کړي بيا بيا

۴۸

عاشقي مي ئي په زړه وکړ گذر بیا بیلتانه مي لنبې بلې کړې په سر بیا

که دفترد خپل قسمت می په خپل لاس وای ما به ستا له غمه وران کا/کړه دا دفتر بیا

ما لا نوم د عاشق آخستي نه وو جدای يي راته جمع کړ لښکر بیا

پس له مرگه به ئي بیا له تا قربان کړم که صورت مي خدای پیدا کړو په محشر بیا

د هجران محنت مي واړه له زړه هېر شو/شه چه مي ولیده په سترگو ستا بشر بیا

چه آسمان ئي مخ پټ کړی په سحاب وو خدای و ما وته څرگند/ښکاره کړو هغه نمر بیا

چه رقیب راته تړلی په زنځیر وو خپل حبیب را باندي پرانیست هغه ور/در بیا

په یوه نظر ئي زړه را څخه یووړ بیا خدای دي خیر کا چه لا وکړي بل نظر

په وصال ئي منت بار اوسه رحمانه په صدف کي دخل نه وي/نشته د گوهر بیا

۴۹

هغو بیا موند سعادت په دا دنیا چه ئي (اوکړه) وکړ قناعت په دا دنیا

نه ملکونه د سلیمان په هزار کاله نه یوه گړ طاعت په دا دنیا

یو نفس د خدای په یاد واوڵی تر دی دنیا نه د درست جهان دولت په دا

په دنیا کښي لوټ هغو عالمو (اوکړ)وکړ چه ئی وکړعبادت په دا دنیا

که نعمت دی خو طاعت او عبادت دی گڼه نشته بل نعمت په دا دنیا

که محنت که مشقت دي خو د دین دي دا دنیا پکار نه دی بل (محنت)نعمت په

بې له خدایه هر چه دي همه/واړه فاني دي   که لذت دی که زینت په دا دنیا

که بادشاه دی/وي  آخر خاورو لره/له به  درومي    څه عزت دی څه قربت/حرمت په دا دنیا

له هغه به زیات  نادان  په جهان نه وي     هر چه غواړي فراغت په دا دنیا

ته چه څو وقته فرصت په دنیا  غواړې     چا موندلې دی فرصت په دا دنیا

عمارت په سر د ریگ/ریګو روان کاندي     هر چه کاندي عمارت په دا دنیا

د مستانو تر لغزشه څه کم نه دی/وي     د سړی استقامت په دا دنیا

هر ژوندی چه د مرده په قبر ورشي     بس دی هُمره نصیحت په دا دنیا

په روانو اوبو ورشه عمر ګوره     ډیر دی هُمره اشارت په دا دنیا

دا پاخه پاخه سرایونه محلونه     خود به وران شي عاقبت په دا دنیا

وړی سترګي د آسمان څه هسي نه دي     چه  څوک  پرېږدي  سلامت  په دا دنیا

هر چه راشي همه واړه ځني درومي     مسافر دی هر صورت په دا دنیا

ریاضت په قیامت  نه  شي  مرد  هغه  دی     چه ئي (اوکړه)وکړ ریاضت په دا دنیا

هم په دا خوي و خصلت به (صبا)سبا پاخي     خدای څوک مه کړه بد خصلت په دا دنیا

هم هغه به یئ خرمن وي پس له مرګه     هرچه کاندي زراعت په دا دنیا

که هغه جهان په دا کښي لیدای نه شي     زه یئ وینم علامت په دا دنیا

په قیامت به ښه توښه ځ/څبله/ و بله نه شي ما لیدلی دی قیامت په دا دنیا

امانت به د لحد په میان کښي پروت وي     هرچه اوسي امانت په دا دنیا

نیک عمل حضور جنت دی طاعت بویه     چه حاصل کا څوک جنت په دا دنیا

نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خویونه هم جنت دی هم راحت په دا دنیا

ضدیت د سړي عمر په عذاب کا پکار نه دی ضدیت په دا دنیا

لاس په سر په سینه ایښی و هرچاته همدغه دی شرافت په دا دنیا

که بلنده مرتبه د چا پکار وي لوی مقام دی عدالت په دا دنیا

بل ارمان به له جهانه یووړ نه شي مګر مهر محبت په دا دنیا

د هغه جهان سودا واړه دلې ده که څوک کاندي تجارت په دا دنیا

که طالع د سړي نه وي جار وتلې هیڅ پټ نه دی حقیقت په دا دنیا

نیک له نیکو سره بویه بد له بدو که څوک غواړي ولایت په دا دنیا

ولایت دی خدای هغو لره ورکړی چه یئ ورک کړ سکونت په دا دنیا

که تمامه دنیا واړه سره یو شي نور به نه کا خپل قسمت په دا دنیا

که څوک مرد دی خو هغه دی په دنیا کښي هرچي نه لري حاجت په دا دنیا

چي رغبت یې د جمله بلاوو سر دی څوک به څه کاندي رغبت په دا دنیا

په رحمن باندي دا عمر هسي تیر شو لکه تیر شي یو ساعت په دا دنیا

۵۰

هوښیار مه ګڼه هوښیار د دې دنیا بی وقوف دی وقوف دار ددې دنیا

رو ښنائی په هغو زړونو ده حرامه چه پرې کښیني ګرد غبار د دې دنیا

پوچ ګوئي ده چه ئي اهل د دنیا کا هر کلام و هر گفتار د دې دنیا

د طفلانو په څیر واړه خاکبازي کړي هر چه کاندي کار و بار د دې دنیا

واړه ډکې خولې د پیو هلکان دي کار دیده و پخته کار د دې دنیا

همیشه به بې وقوف او بې شعور وي چه مخمور وي په خمار د دې دنیا

د شرابو هم لا هُمره مستي نه وي		لکه مست وي خمر خوار د دې دنیا

هر بیمار لره دارو په جهان شته دي		دارو نه لري بیمار د دې دنیا

د  هر سَوي علاج وشي په جهان کښې		مګر سَوی په شرار د دې دنیا

هر چه  واچوې و اور ته واړه سوځي		موړ به نشي طلبګار د دې دنیا

ګرفتار ئي همیشه  په  غم کې ډوب وي		هېڅوک مه شه ګرفتار د دې دنیا

تل به پروت وي په ظلمت و په تور تم کښې چه اسیر وي په کفار د دې دنیا

 په مسلمو کښې خاصه مسلم هغه دی		چه ئي وشلاوه زنار د دې دنیا

څه و بت و ته سجده څه و دنیا ته		بت پرست دی پرستار ددې دنیا

 تن ئي پاتي شي بې سره سر ئي لاړ شي		سردار کله دی سردار د دې دنیا

زوی و لوڼه یتیمان کا ځني دورمي		بې وفا دي مور و پلار د دې دنیا

همیشه  به ئي يو پېڼې د غم په سر وي		چه په سر  ئي وي دستار  د دې دنیا

واړه غم  دی  که  ئي  پیرې  که  ئي  پلورې نور څه نشته په بازار د دې دنیا

همګي واړه ټګان دي ټګي کاندي		فروشنده و خریدار د دې دنیا

په دنیا به مینه نه کاندي هیچرې		چه خبروي په اضرار د دې دنیا

 چه نظر د چا په  دین  و  په  ایمان  وي		هغه نه کا انتظار د دې دنیا

لوی هلک ئي همه واړه مکاران دي		څه ویسا ده په مکار د دې دنیا

آشنایان ئي همه واړه مکاران/اغیاران دي		یار دی چیری په دیار د دې دنیا

چه پیدا شي همګي واړه فنا شي		راشه وګوره ناتار د دې دنیا

چه ویریږي  له کوهـ او له ګړنګه		هغه نه درومي په لار د دې دنیا

هر سړي لره چي  ورشي ځني درومي		ما لیدلی دی رفتار د دې دنیا

په یوه ګړ بهار وي بیا خزان شي		بقا نه لري بهار ددې دنیا

که هزار هزار پښت ورته ته کیږدې		بې بنیاده دی دیوار د دې دنیا

که د اوسپنو حصار تر ځان چاپیر کړې		ښیښه وګڼه حصار د دې دنیا

لکه سیوری د آفتاب په مخ کښي ګرزي		نشته هیچري قرار ددې دنیا

هیڅ ګمان د بهتر وربندي مه کړه		کهتري ده وار په واردې دنیا

بې مقراضه غوڅوي د سړی عُمر		هم دا لیل(همدا)وهم نهار د دې دنیا

پس له مرګه به حساب (د)له سړي غو ښت شي		په انداز و په مقدار د دې دنیا

عاقبت خو به یو موټی شي د خاورو		ګلعذارو ګل رخسار د دې دنیا

برابر به له ګدایه سره پاخي		شهزاده و شهریار د دې دنیا

پاس به داغ وي د لئیم په ټټر باندي		هر درم و هر دینار ددې دنیا

د قانع تر قناعته صدقه شه		هم دنیا و هم دینار/دنیا دار ددې دنیا

پس له مرګه به همه واړه مظلوم وي		ظالمان و ستمګار ددې دنیا

تر قیامت به دغه لس او دغه شل وي		پوره نه کړ هیچا شمار ددې دنیا

چه ایام پرې د کفن (او) د غسل ورشي دنیا		بې پردې شي پرده دار ددې

په تخته باندي بیرون شي له حجابه		شرمناک او شرمسار ددې دنیا

تر/له هر چا به پیغمبر ښخه وه ډیره		که څه قرب وای یا وقار ددې دنیا

یو فساد به ئي بیان په رحمان نشي		فسادونه دي بسیار ددې دنیا



له فراقه چي يې آه کړم سوک په سترګو شي بل ګرداّب	يو لستونۍ مي ګرداب

هومره تاو د بېلتانه راباندي زور شي	چي حساب يې بيان نه شي په کتاب

١
هسي مست يم ستا د شونډو په شراب	چه به نه وي بل داهسي مست خراب

لاس د ستا په مينه اچوم و ګل ته	لکه بوټي ته لاس اچوي غرقاب

دا سرخي او سفيدي ده ستا په مخ کښي/دستا دمخ ده (خوناب)سحاب	که زما په مخ باران دی د

څه اثر به زما اوښکې په تا کاندي (اوښو)اوښکو د کباب	لا تازه شي اور په

عاشقان دي سترګې روڼې کا په عشق کښي د سيلاب	دا خو(ا)ب نه دی منزل ګاه دی

ما چه خال د ستا د وروځو په ميان وليد شته نه محراب	نه بل هسي رنګ امام

ښاپيرچه ليدی نه شي سبب دا دی په حجاب	مخ د ستا له غمه نغاړي

چه سبا شي ستا تر مخ پوري شرميږي شپه کاندي ماهتاب	ځکه زيست په توره

حجاب واخله مخ کړه تور د هغو خلقو آفتاب	چه تحسين کا ستا په دور د

هسي نه چه زه دلبر وتا ته وايم خطاب	خدای دېتا لره درکړی دا

ستا د مخ په ورق باندي خط و خال دی باندي اعراب	د مصحف په صحيفو

ستا د حسن حساب هيڅ په رحمان نه شي حساب
هم په دا چه بې حساب دی بې

يو كتاب په سړبن كي چا ونه كړ
بې رحمانه چه ئي وكړ دا كتاب
٢
چي يې وليد د ستا حسن بې حساب آفتاب
له دې قصده تاو پيدا شو له

ستا له غم مي سترغلی سرې سرې ناغې شوې سره طناب
يا خيمې دي سياه پوش

په آرزو و دي د نرګس سترګي څلور سوې غرقاب
غونچه سره د زړه په وينو شوه

که دي زلفې په مخ پيچوتاب شوې ښايي تاب
وېښته څه طاقت لري د اور له

زه چي خدای د ستا له غم سره آشنا کړم نایاب
خوشحالي مي نور نايابه شوه

سترغلي مي د فراق په ژړا سره شوو
د سبزي اثر يې پاڅېده له آب

مه، خورشيد چي دي ښايست پوري شرمېږي
ځکه مخ پناه کوي تر کوه قاب

زه دي پېژنم په اصل کي خاکي يې
ځان به څو ځنډې په ګوتي له تراب

څو دي خيال د آشنا ګرځي په لېمه کي
خبر زده کړه ته د اوښکو له سېلاب

د رحمان بخت به هاله له خوبه ويښ شي خواب
که ته سترګي ورته پورته کړې له
٣
لاس مي وتړي د زلفو په طناب قصاب
بيا مي ويلوري/وسپاري د سترګو په

هسي آب ئي دی د دوو سترګو په تيغ کښي
چه بې سره په سر نه لري حباب

چه توسن د فلك زين كاندي له نازه
دا هلال ئي په ځای راوشي د رکاب

په درګاه ئي درويزه کاندي د حسن
کنډولی په لاس سپوږميه هم آفتاب

چه را يادې يې سرې شونډې سور پېزوان کړم/سپين رخسار دی له چشمانو مې بهيږي سره شهاب

له فراقه چې يې آه کړم سوک په سترګو بل ګردآب يو لستوڼی مې ګرداب (شي)

چه د مخ و آب و تاب ته ئي نظر کړم راته هيڅ شي د ګلونو آب و تاب

چي نسيم ئي د زلفينو را پيدا شي درست مي ډوب کاندي په مښک و په ګلاب

چه د سپي آواز ئي واورم هسي خوښ يم لکه څوك په نغمه خوښ وي د رباب

ما وي مخ ئي ګوندي ووينم په خوب کښي باري چيري شي بې ياره د چا/خورد و خواب

په غزل کښي خو دوه بيته انتخاب وي د رحمان تمام غزل دی انتخاب

۴

هر مطرب چه غوړ تاو کا د رباب خراب/کباب په دا تاو کي زما زړه کاندي

چه سامع ئي په نغمه په ترانه شم ديوانه شم ګريوان څيري مست خراب

هم ئي تار هم ئي ګفتار هسي اثر کا چه هيڅوک ئي نه طاقت لري نه تاب

يو ئي ساز بل ئي آواز دی/وي د لښتيو دريم شعر پرې آغاز کا/کړي انتخاب

څلورم ئي يو ساقي د ښنګه ناست وي/کښېني چه مخئ ئي نه آفتاب وي نه مهتاب

دا څلور واړه فتنې په څلور کنجه او پنځم ئي صراحي د مى ناب

شپږم وخت د نو بهار اووم ځواني وي اتم شغل د کباب نهم رباب

چه دا همره آفتونه سره ټول شي اجتناب ترو څوك څه رنګ ځني کاندي

چه دا هسي دلبران پرې اثر نه کا یا به دیو یا به دیوال وي یا دواب

را څرگند به شي پرهيز د پرهيزگارو که قادر شي په شاهد او په شراب

زه رحمان له ريا زهده پناه غواړم د ريا زهد عذاب دی هم عتاب

۵

ورقونه لټوم د هر مکتوب په کښي غواړم خال و خط د خپل محبوب

یا تنور دی یا دکان د آهنگرو قلوب چه په عشق کښي تصور کړم خپل

په خندا خندا ځان اچوي واورته مجذوب خدای څوك مه کړه په جذبه د عشق

زه چه غم د مهرويانو را په زړه کړم له دې غمه لاړ شي زړه را څخه ډوب

گوره څه رنگ عشق آسان کړه و عاشق ته دا مشکل مشقتونه د ايوب

په ژړا ژړا تر هسي حده راغی يعقوب چه ځان ړوند کړ په يوسف پسې

عشق دی دا چه معشوقه شوه و عاشق ته اسلوب نه رخسار د مهرويانو په

هغه څه پو ښتې له هجره له وصاله محبوب چه پخپله هم محب شي هم

چه نظر ئي له صورته په معنی کړو خوب و رحمان وته يکسان شو زشت و

۶

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب ترتیب		راته هیڅ شي خپل تالاش و خپل

مګر خود پخپله خدای د چا طبیب شي طبیب		ګڼه نشته په جهان کښي بل

را څرګند دی سود و زیان د رقیبانو د چا رقیب		که خدای/خدای دي نه کاندي خپل یار

چه خپل یار د چا رقیب شي مثال دا دی شي غریب		لکه څوك چه په وطن کښي

چه غریب شي په وطن کښي فرق ئي نه وي جریب		که فرسنګ ئي وي ترمیانه که

ما په عشق کښي هیڅ حاصل نه کړه بي غمه ادیب		هر چه وایئ واړه ښه وایئ

د ښمن هم د سړي کله کله دوست شي حبیب		دوستي نه کا د رحمان سره

۷

زه په سل رنګه راغب		ته په سل رنګه غایب

دا به څه رنګ شي دلبره چه زه مست یم ته تایب

که له جوره دي فریاد کړم		دا هم نه دی مناسب

که څه وایم نه مي رسي		زه مغلوب یم ته غالب

څه سیالي برابري ده		د مطلوب او د طالب

دا ستا مهر و محبت کړ		خدای په ما باندي واجب

درد و غم دي هُمره نه دی		چه ئي وکښم په کاتب

جدائي ده ډیره سخته		د ارواح او د قالب

چه مجنون په ځانکندن شه/شو زه ئي پریښودم نایب

وصيت ئي راته وکړو په ځو رنګه عجايب

چه روزي دي شه رحمانه زما واړه مراتب



۱

که مي وشي له دلبره ملاقات بیا به نه ځم له دې دره په حیات

پس له دې مي دي استوګنه خدای نصیبـ کا په دا در کښي که حیات وي که ممات

ځای لري/ښائي دا که زه خپل یار وته سجده کړم هغه یار زما قبله دی د حاجات

د خپل یار تر لعلو لبو به ئي ځار کړم که شکرې وي که قند وي که نبات

دا زما د یار جلوه ده چه لیده شي لکه نمر په صومعه د سومنات

تر ما لا په دلبرانو ډیر مین دی چه خبرې کړي د کشف و کرامات

د ریا له زاهدي زما توبه ده چه ئي کاندي ځوك په رسم و په عادات

په ورځ پند ونصیحتـ وایئ و بل ته په شپه ناست وي د مغان په خرابات

دین ئي دام وي ددنیا په لارکي ایښی پرې را اړوي وحشیان د مخلوقات

د هغو په لور ئي سترګې وي ختلي چه په لاس ئي سرسایه وي یا زکات

زه رحمان له هسي اهله پناه غواړم هر چه لاف کا په خلاف د مقامات

٢

آفرین د عاشقانو په همت چه په عشق کښي یك انداز وي یك جهت

نه ئي هیچري تغییر و نه تبدیل وي که تمام جهان پرې وایئ ملامت

که ځوك سل نصیحتونه ورته کاندي غوږ ئي نه وي د هیچا په نصیحت

چه په یار پسې تر ځان و جهان تیر شي ځوك کولی شي دا هسي مشقت

که تمام عمر ئي یار په سترګو ناست وي تمام عمر ورته ښکاري/ورښکاریږی یو ساعت

که یو دم شي هغه یار ور څخه لري د/هغه دم شي ورته عمر د قیامت

که دوزخ لره د یار په مینه درومي دوزخ هم ورته جلوه کا د جنت

د عشق لاره د توکل په پښوغوځیري نه په پښود ریاضت و دیانت

په تدبیر او په تالاش کله مونده شي چه موقوف وي هغه کار په عنایت

د عاشق خاطر له غیره پاکیزه دی ددریاب په مخ کښي نه وي نجاست

خدای چه زړه د مطلوب کاږی کږ رحمانه کاږی پریووت د طالب په عمارت



١

د وصال شپه مي بدله په بیلتون شوه الغیاث دقیامت خواري را پېښه په ژوندون شوه الغیاث

ما لا طمع د وصال د نعمتونو ترې کوله نا گهان کاسه/پیاله نسکوره د ګردون شوه الغیاث

هغه چار چه مي په لاس وه زه پرې نه وم پوهیدلی اوس چه پوه شوم له اختیاره مي بیرون شوه الغیاث

د وصال په طمع طوق د جدای شه را په غاړه هغه طمع چه زما وه اوس طاعون شوه الغیاث

په حکمت په عقل پیټی د عشق څوك اخستي نه شي په دا کار کښي ماته ملا د افلاطون شوه الغیاث

ما رحمان د یار وصال په آسان موندلی نه دی زرد روئي مي سرخروئي په ځیګر خون شوه الغیاث

٢

یار یاري را سره نه که الغیاث نه ئي ترس شي نه ئي کرکه الغیاث

سرو و مال واړه زما و دل آرام ته نه ارزیږي په کنجکه الغیاث

په حملو حملو مي زړه وړي نه پوهیږم افرید ده که خټکه الغیاث

بيلتانه ئي پيښاور راته تنور کړ — له خيبره تر اټکه الغياث

خو چه را کاږي چوګان په مخ د زلفو — ګوی زما دا خراب زړه که الغياث

هيڅ سبب ئي موندی نه شي جفا کاندي — نه پوهيږم چه په څه که الغياث

په اخلاص او په راستۍ ورته ولاړ يم — يار جفا همره په څه که الغياث

سل خبرې که له صدقه ورته وکړم — يار يوه را سره نه که الغياث

چه ميويني له رقيبه سره خاندي — په ژړا مي ليمه سره که الغياث

زه رحمان مدام د يار په رضا درومم — يار په خپله رضا تله که الغياث

٣

چه ویلي مي له تا دی دا حدیث سر نامه د هر انشا دی دا حدیث

چه آغاز مي کړه په مدحه د خوبانو ځکه گنج بې بها دی دا حدیث

په ثنا د دل پسندو دلرباوو دل پسند و دل ربا دی دا حدیث

لکه باد د صبحدم چه غنچه وا کا هسي رنگه دلکشا دی دا حدیث

چه اوصاف مي د سرو شنډو په کښي راوړه خوږ تر قند و تر حلوا دی دا حدیث

نه پوهیږم چه اوبه دي د حیاتو که نفس د مسیحا دی دا حدیث

د غونډ ژبو شاعرانو د خولې نه دی ځکه هسي رنگ صفا دی دا حدیث

ستا و مخ ته که څوك شمس و قمر وایئ حدیث دروغ نه دي په رښتیا دی دا

که څوك وایئ چه چا کړی دا حدیث دی حدیث رحمان وایئ چه زما دی دا

## ج

چه برهم کا عاشقي د چا مزاج حکیمان ئي درمانده شي په علاج

په آشنا پسې تل ژاړي په دوه سترگو د اوبو په ځای خوناب کاندي اخراج

دواړه لاس ئي وي له دواړو کونو وللي ډوب وي تل د عاشقیه په امواج

په هغو کښي چه څه بوي د عاشقئ وي رواج په کښي نه وي بوي د رسم و د

ابراهیم ادهم څه هسي نادان نه و تاج چه نظر ئي یا په تخت ؤ یا په

مجنون هسي رنگ مین په لیلي نه و چه په نورو ئي موقوف وي احتیاج

لیونتوب له لیونو تلونی نه دی که ئي راج په خونه ورشي که تاراج

که ئي سر لکه منصور غوندي په دار شي دغه دار دی و رحمان وته معراج

# ح

۱

په طلب د ماهرويانو سرګردان دی زما روح لکه باد د ګل په بوي پسې پريشان دی زما روح

ستا د حسن و آفتاب ته چه سپارلي ځان شبنم دی لکه صبح د ژړا په ځای خندان دی زما روح

چه مي وليده ستا د جمال عکس په خپل ځان کښي هم په دا د آينې په څير روښان/حيران دی زما روح

ستا د مخ د آئينې له برکته زما جانه هميشه لکه طوطي هسي ګويان دی زما روح

لکه رنګ د ميو نابو چه ليده شي په ښيښه کي هسي رنګ په ضعيف تن کښي نمايان دی زما روح

منتظر دي د وصال د ګلستان يم تل تر تله سر تر پايه د شبنم په څېر چشمان دی زما روح

چه حاصله مي له حسنه روښنائي شوه په طلب کښي شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان دی زما روح

ستا په زلفو په رخسار پسي رحمان يم بې وطنه مسافر د هندوستان و خراسان دی زما روح

۲

ستا وصال دی را بخښلی زما روح ستا هجران دی را پرودلی/نيولی زما روح

ستا په مخ پسې يې مخ ونيو راهي شو له صورته دی وتلی زما روح

چه هر ګزمَلَكُ اَلَمو ت پرې نه پوهيږي هسي شان دی تا وکښلی زما روح

ځان ئي هسي ستا په مينه پسې ورك کړ چه هيچا نه دی موندلی زما روح

که وي هم به تا څخه وي که خدای کاندي نه دی بلې خوا ته تللی زما روح

بلبل نه دی دا چه الوزي په ګلو ستا په لور دی الوتلی زما روح

چه ئي خاورې کړ صورت د ستا په در کښې  سر تر عرشه دی وکښلی  زما  روح

ته  ئي  پيژنې  چه څه دی  يا  څه  نه دی      نور چا نه دی پيژندلی زما روح

زه رحمان له خپله ځانه/ياره  خبر نه يم               چه په څه رنګ دی وکښلی زما روح

خ

۱

ما سحر سبا ليدلی وو د چا مخ
چه مي درسته ورځ ونه ليده دا ستا مخ

دا خو مخ زما و تا وته خدای هيڅ کړ
ګڼه هر يو آشنا ګوري د آشنا مخ

ډير مخونه د جفا دي را څرګند کړه
لا به کله را څرګند کړې د وفا مخ

څو د مرګ په تماچه او ښتی نه دی
اوښتونی له تا نه دی/مه ګڼه زما مخ

زه په تا پسې راغلی په دا مخ يم
که ته نه وای ما به څه کول په دا مخ

ما به څه لره په تا پسې ژړا کړه
که موندی شوی بل د ستا په څير زيبا مخ

د رقيب طمع مي نه وه ستا په در کښي
په جنت کي دي را وښود د بلا مخ

زه به څه رنګ د رقيب و مخ ته ګورم
کله اهل سنت ګوري د ترسا مخ

د چکنا چکن بيلتون په نيمه شپه وي
ستا زما په حال غماز شه د سبا مخ

رحمان ستا په مخ دا ورانه دنيا ګوري
خدای بې تا ور څرګند مه کړه د دنيا مخ

۲

کله شو لا کله خريدار يم ستا د مخ
تير تر سر و ماله په بازار يم ستا د مخ

بې د ستا له مخه نور مي هيڅ په مخ کښي نشته
هسي رنګ نتلی په ناتار يم ستا د مخ

هيڅ په سترګو نه وينم دا خپل صورت چه کوم دی
ډوب تر هسي حده په انوار يم ستا د مخ

درد و آه وکارم بهانه د تماکو کړم
سوی لوغړن مدام په نار يم ستا د مخ

نور وګړي واړه همګي د دنيا کار کا
زه هميشه غرق په انتظار يم ستا د مخ

شکر چه ئي خلاص کړم د نور خلقو له منته  سر په سجده ایښی منت بار یم ستا د مخ

هره خوا چه درومم زه رحمان د زړه په سېل        بل مطلب مي نشته طلبگار یم ستا د مخ
٣
چه پیدا شو  ستا  چشمان دا هسي شوخ             نور به نه وي مردمان دا هسي شوخ

کج زلفان کج ابروان لکه چه  ستا دي          نه لړم شته نه ماران دا هسي شوخ

ډیرغمونه شوخ شوخ شته په دادنیا/دي په جهان کښي       ولي نه لکه هجران دا هسي شوخ

مګر دیو وي چه بې غم وي په هجران کښي  ګڼه نه به وي انسان دا هسي شوخ

دا فتنې او فسادونه به وو چیري             چې/که  پیدا  نه  وی  آسمان دا هسي شوخ

د آشنا له غمه زړه د آشنا نه چوي             آفریده  کړه  خدای  جهان دا هسي شوخ

چه یوسف ئي د دنیا په متاع ورکړ             پیدا مه شه بل کاروان دا هسي شوخ

چه بوسه له یاره غواړي بې ادبه هسي شوخ             خدای دي نه کاندي رحمان دا

**د**

١
پادشاهانو که قصرونه کړل بنیاد             ما د عشق عمارتونه کړل آباد

نوم د کوم یوه بادشاه هسي یادیږي             لکه نوم دی د مجنون  او د فرهاد

عشق  عاشق لره یو هسي پیر استاد دی استاد             چه به نه  وي بل دا  هسي پیر

دغه واړه کرامات د عاشق دي اوتاد             چه څوك قطب کا څوك غوث کا څوك

د دنیا چارې همه واړه فاني دي             څوك به څه کا په دا چارو اعتماد

لکه سیورى چه د نمر په مخ کښي ګرزي نه استوګنه چيرته کاندي نه اِستاد

هيڅ وفا ئي له هيچا سره و نه کړه که جمشيد ۀ که بهمن ۀ که قباد

که جمشيد ۀ که بهمن که کی قباد ۀ که نمرود ۀ که فرعون ۀ که شداد

رسَولي ئي تر مراده هيڅوك نه دي همه واړه هسي پاتي شول نامراد

نه چا ختم نه دعا وريسي وکړه که ئي آل که ئي عيال ۀ که اولاد

زه رحمان د زمانې له جوره دروممم خپل صاحب لره په داد و په فرياد

٢

زه که لافي د وفا کړمه/کوم هر چند سوګند هغه يار مي باور نه کا/کړي په

زه بې ياره هسي زيست کړم په جهان کښي لکه زيست وي په مجمر کښي د سپند

آبروئي د طالبانو خپل مطلب وي آبروئي د غلامانو خپل خاوند

لکه يار مي سر بلند دى په جهان کښي بلند په تاثير ئي هسي زه شوم سر

لکه يار چه مي ښرګند دى په جهان کښي ښرګند زه هم هسي په دا دور کښي يم

چه مي مدحه د خوبانو کړه آغازه هر کلام مي د لپذير شه دل پسند

لکه خوند لري زما خوږې خبرې په شکرو کښي هم نشته هسي خوند

هغه قند چه خداى زما په خوله کښي کښيښود حلواپانو څخه نشته هسي قند

لکه زه چه سخندان و هنرمند يم بل به نه وي سخندان و هنرمند

په اشعار کښي قوتناك لکه زمرى يم ولي نه يم د زمري په څير ګزند

هم په مدح ښه پوهيږم هم په هجوه خورسند ولي نه يم په دا چارو ډير

بې له عشقه که مي عيب که مي هنر دی | ما غوڅ کړی دی له ځانه بل پيوند
زه عاشق يم سروکار مي دی له عشقه | نه خليل نه داودزی يم نه مهمند
چه و ما ته نصيحت کا څوك په عشق کښي | ګويا پلار ته نصيحت کاندي فرزند
هر سړی چه آئينه په لاس کښي خاندي | ګويا کاندي په خپل ځان پوري ريشخند
رنګ ريزان دي اول خپله بريرې رنګ کا | بيا هاله دي و رحمان ته وايئ پند

٣

که قاصد يې د مقصود | آواره کړه زيان وسود
هرچه درشي ستا په وړاندي | واړه وګڼه بهبود
هرچه دي سوای له خدايه | واړه وګڼه نابود
رضا پاسله وقضاته | مدام خوښ اوسه خشنود
و هست وته جلوه کا | لکه ابر هسي دود
ته وځان وته نظر کړه | چه قبول يې که مردود
ننداړچي د خپل صورت شه | چه مسلم يې که جهود
امتي د ابراهيم شه | تابع مه شه د نمرود
د غفلت له خوبه پاڅه | څوبه اوسې خواب آلود
مقيد و مشغول اوسه | په دعا و په درود
آسمان طوره په رکوع شه | زمين طوره په سجود
هر/ټول اشيا د خدای ثنا کا | په نغمه لکه داوود
که بيدار شې خود به واورې | په هر لوري دا سرود
که اياز غوندي بنده شې | نور به ناز کړې په محمود

(هر)ټول اسباب د ښو د بدو | مُهيا دي هم موجود
که داناېي و بله بيل کړه | فرموده و نافرمود
څو/چي سپند نه شي په اور کښي | نه وي خوند دبوي د عود
ځان له خبثه/غشه پاکيزه کړه | لکه بحر نامعدود
هلاک څکه شي/شو رحمانه | چه يې پاک نه شو/پاک نه شي دا وجود
رحمان بې د يار له ذِکره | نه زده بل ګفت وشنود



چه مي يار وليد په سيمه د اغيار ګړ | له غيرته مي ليمه شوه په خونبار ګړ
دغه حق د بلبلانو په جانب دی ګړ | خدای دي نه کا مښګيرك په لاله زار
زه په وصل کښي هجران هسي پيځمه بازار ګړ | لکه څوك چه خالي لاس وي په
په اميد د زلفو ونښتم په دام کښي ګړ | روهيلی وم ساده دل په هندوبار
د ديدن په ګدائي کښي مي ننګ نه شي په بازار ګړ | درويزه کړم/درويزګر يم د ښتانو
د وفا د ګلو پاڼې په کښي نشته ګړ | کاشکي مه وای د دې دهر په ګلزار
زړه مي بې خپله نګاره آرام نه کا ګړ | که هر څو ئي کړم په نقش و په نګار
که پخوا تر آشنائي بيلتون ليدی شوای | هيڅ بنده د خدای به نه ؤ په دا کار ګړ
سخت سفر د عاشق څوک او زه څوک دا لار ګړ | خدای ناڅاپه پرې راګړ کړم په

زه رحمان ئي د فردوس له غمه خلاص کړم چه په کلي په کوڅه شوم د خپل يار گډ



١

په بزرگ د هغه پاك پرودگار موقوف مه شه په سړي دسړي کار

په سړي چه د سړي غرض موقوف شي نور بې آبه بې حرمته شي روزگار

احتياج هسي بلا ده په جهان کښي چه پلار زوی کا د زوی او زوی د پلار

که د پير په خپل مريد باندي غرض وي هيڅ يې نه وي په مريد باندي وقار

زمانه هسې په مخه ده بې رويه چي غالب کا په اسلام باندي کفار

په ساعت کښي گدا شاه کا شاه گدا کا دا فلك ځکه باله شي کج رفتار

چه همه عمر ئي تاج وي په سر ايښی ور په سر کاندي گيډ د خس و خار

چه قادر نه په درم و په دينار وي په هغو باندي گنجونه کا انبار

زمانې د رحمان زړه دی کباب کړی له احواله ئي څوك نه دي خبردار

٢

همره اوښکې مي بهيږ ي په رخسار چه غرقاب مي هم گريوان دي همکنار

هغه يار مي هسي ناست د زړه په سر دی لکه ايښی چه چا گل وي په دستار

که څوك وايئ چه مار کله په کټ خيژي زه خوړلي يم په کټ د زلفو مار

خو د يار بيمارې سترگې خدای خوني کړې گڼه خون کله کولی شي بيمار

که په دار شم زه د يار له لاسه خوښ يم سروقد دی زما يار زما دلدار

بس که دا چه زه په يار پسي غوڅ غوڅ يم يار خدای دي نه کا/کړي لکه زه يم هسي

همره جور لکه يار له/چه ما سره کا ياد مي نه دی همره جور د اغيار

دلبران کوډې جادو کړي زړونه اخلي هغه وايه چه بې کوډو وي دلدار

| | |
|---|---|
| چه د زړونو له نمانځلو بې پروا دی/ي | تروکه زړه د سړي يوسي څه پکار |
| په ګريوان ئي تل د اوښکو باران اوري<br>۳ | نه ورَکیږي د رحمان د زړه غبار |
| چه دي زړه پوري تړلی استوار | دا جهان دي د نيکه دی که د پلار؟ |
| ته خپل پلار و نيکه وګوره چه څه شول | هسي ستا دی هم په دوي پسې رفتار |
| تل ړومبی د ورستي پُل دی پرې تيريږي | کړی نه دی چا په پله باندي قرار |
| هسي نه چه زه يوازي تا ته وايم<br>هزار | راغله لاړه ستا په طور صد |
| دعوی مه کړه په ناحق به ئي خپل نه کړې | پردی ښهر پردی ملك پردی ديار |
| چه استوګنه په پردي وطن کښي کاندي | هغه نه لري د هيڅ واك و اختيار |
| که هزار قَسَمه وخوري په يو کار کښي | نه کا څوك په مسافرو اعتبار |
| چه په صبح شګفته شي/سبا شګفته کيږي ماښام رژي | څه اميد دی په ګلونو د ګلزار |
| که دي ورور که دي عزيز وي که دي يار وي | مه ئي ورور مه ئي عزيز ګڼه مه يار |
| چه پيدا شي همګي واړه فنا شي<br>کار<br>۴ | اې رحمانه دا جهان دی دا ئي |

ځو جفا قبوله نه کړي د اغيار　　　و به نه ويني په سترګو مخ د يار

چه اول ئي خار زرغون شي په پهلو کښي　　　غنچه هاله/هله شګفته شي په ګلزار

جنت چا په رضايت موندلی نه دی　　　ولي بويه هر بنده لره خپل کار

که مونده شوی خوشخويئ په خوشبوئي (کښي)　　　پروت به نه ؤ په چندن باندي ښامار

آب تر لعلو د لاله ګلونو ډير دی!　　　بخت دی دا چه ځوك عزيز کاندي ځوك خوار

هسي زيب کا په بياض د رحمان شعر　　　لکه زلفي د خوبانو په رخسار

۵

ځوك دي را کاندي قسم په کردګار　　　که درم لرم په کور کښي يا دينار

زه دينار و درم نه لرم په کور کښي　　　ولي نور عالم مي بولي دنيا دار

هم په دا چه نه له ځايه چيرته خوځم　　　نه د هيڅ يوه مخلوق يم منت بار

نه مي ښکته ملك ليدلی دی نه پورته　　　خبر نه يم په يمين و په يسار

آب و خور لکه آسيا په ځای را رسي　　　په خپل کور کښي مي سکون دی هم رفتار

لکه ونه مستقيم په خپل مکان يم　　　که خزان را باندي راشي که بهار

توکل مي لاس پښي سره کړه په نکريزو　　　چه په ِځای ئي کښينولی يم قرار

چه زما په باب کښي/دي کښلي دي رارسي　　　که رحمت/راحت دی که زحمت دی وار په وار

چه هژده هزار قومونه ئي پيدا کړل　　　مربي مي دی هغه پروردګار

کار همه په اراده د خدای موقوف دی　　　هيڅ موقوف نه دی د چا په انتظار

غم به هيچيري و نه کا په دنيا کښي　　　که څه کيږي د رحمان په اختيار

۶

دغه يار دی دا اغيار!　　　دغه ګل دی دغه خار

دغه ګل دی دخه خار دی  دا منصور دی دغه دار

دا رقیب دی دا حبیب دی دغه ګنج دی دغه مار

دغه عشق دی دغه عقل          دغه غم دی دا غمخوار

دا هجران دی دا وصال دی       دا خزان دی دا بهار

دا طاعت دا معصیت دی  دغه نُور دی دغه نار

دا عالِم دی دا جاهل دی          دا خفته دی دا بیدار

دا رحمان دی دا جانان دی       دا طبیب دی دا بیمار

٧

هرچه نه وی خوارو زار   په طلب د خپل دلدار

تر پږوني يې صدقه شه          دهغه عاشق دستار

هزار حیف دی هزار حیف دی    هزار څه لا صد هزار

چه عاشق په عاشق کښي      نه حلال وي نه مردار

نه پتنګ د خپل څراغ وي  نه بلبل د خپل ګلزار

نه مجنون غوندي رسوا وي      نه منصور غوندي په دار

دواړه نه کيږي رحمانه            يا به يار شي يا بيزار

٨

دا څه مخ دي منور        چه هم شمس دی هم قمر

دا څه زلفې دي مُښکيني        چه هم مښک دی هم عنبر

دا څه پيوسته ابرو دي          چه هم نيش دی هم نشتر

دا څه سترګې دي قاتلې         چه هم سيف دي هم خنجر

دا څه شونډې دي ميګونې       چه هم مى دي هم شکر

دا څه سپین سپیڅلي غاښ دي  چه هم دُر دی هم ګوهر

دا څه سیب زنخدان دی          چه هم سیم دی هم ثمر

دا څه قد و څه قامت دی          چه هم ګل دی هم عرعر

دا څه ملا ده باریک وضعه چه هم موي دی هم کمر

دا څه زړه دی د خوبانو          چه هم موم دی هم حجر

دا څه یار دی نه پوهیږم          چه هم دل دی هم دلبر

دا څه بُت دی زما ربه          چه هم بُت دی هم بشر

دا څه شعر دی رحمانه          چه هم ګنج دی هم هنر

۹

تل به نه وي شګفته ګلزار د عمر          نه به جوړ وي همیشه بازار د عمر

لکه سیند د اباسیند په غورزي درومي          هسي یون دی په تلوار تلوار د عمر

لکه برق چه مخ خرګند کاندي بیا نه وي رفتار د عمر          هسي تیز دی بې سکون

سر کشي لري تر هسي حده پوري عمر          چه نیوی نه شيهيڅوك  مهار د

چه سمند ئي نه جلب لري نه واګې د عمر          خود به پریوزي عاقبت شهسوار

په ساعت د سلو کالو یاري پرې کا دی یار د عمر          بې وفا دی هسې رنګه/په هسي رنګ

خپل  صورت به د حباب په کمتر/سترګو ګوري کښي شمار د عمر          که څوك وکاندي په زړه

نه له  کوره  چیرته ځمه نه سفر کړم عمر          بې سفره مي  غوځیږي  لار د

عاقبت به د اجل په مقراض غوڅ شي
عمر پیوسته به مدام نه وي تار د

بیا ئي وار په دا دنیا نشته رحمانه
وار د عمر په هر چا باندي چه تیر شي/شو

١٠

زه تير شوی يم تر سر          په طلب د خپل دلبر

څو ژوندی يم په دنيا کي  پرې به نه ږدم دغه در

د آشنا په طلب ګرځم          وچي شونډي لېمه تر

يوقدم مي دی په بحر          بل قدم مي دی په بر

دواړه لاس مي دي نيولي هم په شام هم په سحر

مناجات مي دی وخدای ته       که يې ووينم بشر

هميشه له خپله بخته          ګيله من يم مرور

چي په مايې پيرزو نه کړ  د خوبانو يو نظر

هم يې ونه ښود و ماته          بې له عشقه بل هنر

عاشقي مي خدای رسوا کړه   په جهان کښي لکه نمر

نصيحت راباندي نه کا          لکه موي همره اثر

واوره غوږ باسه ناصحه  کوتاه وايم مختصر

په مولا مي دي سوګند وي       هم په روح د پيغمبر

جارواته مي ببرته نشته          چه عالم شه را خبر

تر مئينه به يې زار کړم          که مي سيم دی که مي زر

که مي سيم دی که مي زر       که مي دُر دی که ګوهر

زه رحمان تر هرڅه تېر يم        تير به نه شم تر دلبر

١١

پورته بدر را ښکاره شه ښکته نمر          ښکته پورته واړه مخ دی د دلبر

نمر سپورمي مي  په پالنګ  د پاسه رغړ ي   چه مي يار په بالښت ولګوي سر

په سرو سپينو دُرو لعلو ئي غوړ ډك شي
در در | چه مي غوړ کاندي د اوښکو په
چه دي ووينم په مخ مي اوښکې درومي | لکه موم چه په آفتاب شي برابر
بل مذکور د سخنگويو سترګو نه زده | بې له دې ذکره چه الله اکبر
ضد دي اور و اوبه بې د يار له شونډو | چي هم اور دی هم اوبه دي د کوثر
په شرابو کښي خوند نشته د شکرو | د يار شونډي هم شراب دي هم شکر
که سل ځله پټ تر شونډو لاندي خاندي | نه پټيږي آب د لعل و د ګوهر
دا خو ما لره خدای راکړ ګڼه نشته | هسي بُت په بتخانه کښي د آذر
پس له دې به ئي په نام د ملَك َبولم | هم په دا چه نشته دا رنګه بشر
که رحمان صاحب نظر باله شي ښائي | چه مدام د يار په مخ لري نظر

۱۲

هسي تله کاندي و ګور ته ياران ژر/زر زر
زر | لکه تله کاندي خپل کور ته کاروان زر زر
هسي زر زر مرګ په مونږه شتابي کا | لکه لو د پاخه کښت کا دهقان زر زر
هسي زر زر دا دنيا وبله اوړي | لکه اوړي و بله ريګ روان زر زر
هسي زر زر صورتونه دي نړيږي | لکه رژي/ريژي لاله زار په خزان زر زر
هسي زر زر دا شيرين عمر تيريږي | لکه بحر چه بهيږي روان زر زر
هسي زر زر ځنبول د ښو نه وي | لکه درومي له جهانه رحمان زر زر

۱۳

چه په زور ور سره نه يې برابر | د هغو تر خنګه مه کښينه زړه ور
زورآور اور و اوبه دي فهم وکړه | چه ډوب نه شې و يا نه سيځې بشر
زندګي که بې اوبو بې اوره نه شي | تل هم نه دي هيچا ايښي په ټټر
خدای ور مه وله سيلاب د چا په خونه | که په قطع هم اوبه وي د کوثر

و دي نه لګيږي اور  په کور د هيچا			که رڼائي وي د شمس او د قمر

چه ئې درست صورت غلبيل شې په اغزيو	وخوږ مه شه د هغې وني ثمر

د هغه ديوال په سيوري ځوك كښني مه نه/كېمنه	چه ولاړ وي لكه زوړند چاود كمر

چه په ګيډه دي ځوخيږي مخ ئي ورك شه	كه د سرو زرو چاړه وي يا خنجر

ناكرده سودونه ډير دي په  جهان كښې		سود هغه دى چه د خير وي نه د شر

و درياب/اوبو ته اچاوه نه شي ځان خوږ دى  ګڼه ډير دي په درياب كښې دُر ګوهر

چه له آب و/آبه له حرمته سره نه وي		خداى ور مه كړه و چا هسي سيم و زر

زور آور كه رسوي و چا ته فيض		له دې فيضه سره وګڼه ضرر

په يار د زور آورو غلط مه شه		مګر دا چه تر ده ته  ئي زورآور

په هر ګاه/وقت چه دى مغلوب وي ته غالب يې	ترو هاله ئي قدمونه ږده په سر

يا خو دا چه ته قدم ئي په درنه ږدې		دغه پسه ئي ځان وګڼه پدر

چه هنر	ګڼي ياري د زور آوارو			بول وكړم زه رحمان په دا هنر

۱۴

په نظر د بې بصر			لكه شام هسي سحر

لكه شام هسي سحر			لكه سنګ هسي ګوهر

لكه سنګ هسي ګوهر		لكه خاوري هسي زر

لكه خاوري هسي زر		لكه خير هسې شر

په نظر ئي معلوميږي		همه واړه برابر

كه ځوك ښه ورسره كاندي/وكا	تر بد يې وي بتر

که څوك بد ورسره کاندي  تر نيک يې وي بهتر

نه په بد ويل زهيرېږي/زهير وي نه په/پر ښه وي د چا زبر

په ثواب/صواب و په خطا ئې  نه دليل وي نه/په نظر

نه آګاه په خپل بهبود وي  نه آګاه په خپل ضرر

نه په عيب څه/باندي پوهيږي  نه پوهيږي په هنر

لکه ړوند و کوڼ چه ګوري  هسي هيڅ نه وي خبر

له طاعته له ګناهه  څه خبر وي ځناور

ځناورو نورڅه نه زده  يا ئې خوب/رغښت وي يا ئې خړ/څر

دا خو ته يې زما نفسه  چه دي زه کړم کورو کر

تمام ووتې له عقله  په دنيا پسي اوتر

نه دي فرض دخدای ادا کړه  نه سنت د پيغمبر

نه دي مرګ په زړه کي ياد وي/ياديږي  نه خواري دي د محشر

اوده پروت ئې دا دي نه زده  چه په خوا لرم سفر

په هردم درڅخه درومي  که پوهيږې دا بشر

هغه تور ويښته دي څه شول  چه هم مښک وو هم عنبر

هغه قد دي مجنون بيد شه  چه چنار وو هم نښتر

تن دي درست زير و زبرشه  زړه دي نه شه لروبر

تر پنجاه و شصته/تر پنجه تير شوې  ته لا ځان بولې پسر

نه دي ترس شې نه دي ويره  نه په زړه باندي اثر

بل به نه وي لکه ته يې هسي شوخ و ځيګرور

په غفلت دي عمر تير کړ نه رهرو شوې نه رهبر

عبادت دي په ريا شه لکه ډک په لاکو زر

لکه قلب ناسره مهر پټ په زَرو کښي حجر

لکه پټ وي په دانه کښي سل اغزيه د شجر

لکه سحر چه بر پای کا سحر ګر و جادوګر

لکه تش صورت بې روحه چه تصوير کا مصور

لکه تش کډو بی مغزه ميان خالي و تن پرور

لکه زړی په ميوه کښي درون سنګ بيرون ثمر

لکه بې لاسه لستوڼی سر تر پايه پای تر سر

لکه ټګ و دغا باز وي په مرغانو کښي ډ/دګر

لکه بې نمکه ناوې چه په سر کاندي ميزر

تر ميزر لاندي چا څه زده چه دختر دی/وي که مادر

نه ئې حسن نه جمال وي غولوي خلق په زيور

هی له هسي فريبيانو لکه زوړند چاود کمر

نيم په زمکه کښي دننه نيم پر سر وي لکه نغر/برسيره لکه غر

په دستار کښي ئې مسواک وي تر بغل لاندي خنجر

په ايرو کښي پټ بڅري په وښو کښي پټ شرر

په شپه ويني د مظلوم خوري سبا/صباح کښيني په منبر

په زړه تور لکه تبئ وي په مخ سپين لکه قمر

ددنيا په طلب ګرځي خپل ځان بولي قلندر

کلمه په ژبه وايي په زړه نه لري باور

| | |
|---|---|
| په مثال د منافقو | نه مسلم وي نه کافر |
| نه مسلم وي نه کافر وي | نه پخلا نه مرور |
| پريشان ګرځي سر وهلي | کوی به کوی و در په در |
| هميشه رفت و آمد کا | د زردارو په ګذر |
| په کوڅه د دنيا دارو | ګو خوري/خورګي کا لکه خر |
| اورنګ زيب هم يو فقير ؤ | چه ټوپۍ ئې وه په سر |
| و ټوپ وته ئې شا کړه | چه قادر شه/شو په افسر |
| خوئ ئې همره فقيري وه | چه څه نه وو ميسر |
| چه فلک ئې ياري وکړه | نور ئې ملک کړ مسخر |
| ګوره څه چارې ئې وکړې | په عيال د خپل پدر |
| وار په وار تر تيغ ئې تير کړ | د خورم تمام ټبر |
| يو ټبر د خورم څه ؤ | ډير عالم ئې کړ ډبر |
| تمامي جهان ئې ونغړد | چه ئې لاس شه باندي بر |
| په فريب فريب يی خپل کړ | بيجا پور او بهاګ نګر |
| بيجاپور بهاګ نګر څه وو | لا جنجی/چينجا و ج/چينجاور |
| هم ئې هند په ډکه واخست | هم کابل هم پيښور/و پښاور |
| بيائې ذکر شوه په زړه کښي | بادشاهي د هفت کشور |
| له حرصه ورته هيڅ شو ه | هم دارا هم سکندر |
| خيال ئې دا وه په خاطر کښي | چه به خپل کړم بحر و بر |

باري ورځ ورځني/ورځخه لاړه! وقت پرې راغی مازيګر

نه ئې مراد د زړه حاصل شه نه ئې يخ کړه خپل ټټر

همګي شو ځني پاتي که ئې ملک ؤ که لښکر

خالي لاس له دنيا ووت لکه عين درويزګر

له دنيا ئې هيڅ يو نه وړه مګر شوئې يو څادر

خوار حيران په ځمکه/زمکه پريووت بې بالينه و بې بستر

نه پوزی شه ترې د لاندي نه ترې لاندي شه ټغر

د بنې په خير خفيف شه چه ثقيل وه لکه غر

د سيلاب په مخ کښي لاړ شه لکه خس وي يا وزر

حق ئې پاتي په ګردن شه د سپاهي و د چاکر

اوس ئې زه په روح دعا کړم که ئې خدای کا بهره ور

حق تعالی يي په/که ئې نصيب کا شيرين حوض د کوثر

د جنت په خوشبوئي ئې خدای دماغ کا معطر

په درست هند باندي ئې حق وه هند يوه شپه ؤه دی يو نمر

د دې نمر په روښنائي تمام هند ؤ منور

په رڼائې خلقو زيست کړو نه څه خوف ؤ نه خطر

خو چه مخ ئې په غروب کړ نور پيدا شه شور و شر

چه په نوم د اورنګ زيب وو وخوړ ګاو هغه دفتر

اوس نوبت د شاه عالم دی دور طور شه ديګر

خدای زده څه بازي شي پيښه عاشوره/چې عاشور شي که اختر

رنګارنګه بازي کاندي    دا آسمان دی بازيګر

ګهې تلخ شي لکه زهر    ګاه شيرين لکه شکر

چه څه وشوه هغه وشوه    لابه کيږي مقدر

ما خو نوم د اورنګ واخيست    دا احوال دی د هرهر

هر سړی د خپلي خوني    هم بادشاه دی هم سرور

هرچه اهل د دنيا دي    واړه هسي دي اکثر

دا بيان دور و دراز ؤ    رحمان وکړ مختصر

نه پخلا نه مرور وي    پرېشان ګرزي در په در

که مي غوا وي که مي وزه وي    که مي آس وي که مي خر

که مي مېږ وي که مي مږ وي    که مي اوښ وي که غاتر

که په کورکي مي کالي وي    که لنګ وي که ټغر

۱۵

که د عشق لاره اغزنه ده/وي هر ګور(ه)    د عاشق په پښوڅپلۍ دي د اوره

که ديدن د ګلعذار/يار مونده په انتظار شي    زما سترګي دي شبنم غوندي څلوره

تيغ د اوسپنو محتاج د نرم آب دی زوره    قرب و حلم يو په سل دي زيات په/تر

له لوئي له سر کشۍ زما توبه ده خير نسکوره    خدای څوك مه کړه د آسمان په

خدای زده څه سودا به پېښه په بازار شي    د بازار خبرې نه شي په خپل کوره

دا همه واړه عاشق لره پيدا شوه/دي    که تهمت که ملامت دی که پيغوره

جفا جور ناز وجور و کبر د خوبانو    ما په ځان دی قبول کړی لکه پوره

راحت بې زحمته نه دی چا موندلی غم ښادي دي د دې دهر خور و ورور

رحمان هسي په خپل یار پسې غوښ غوښ یم لکه غوښ په خپل اولاد وي پلار و مور

په یقین به بد کرداره بدکردار کا کشیده شي د بد کردار سړي پېغور

۱۶

پس له مرگه که څوك ارت غواړي خپل ګور کور — که حق وایم همره ارت دي بویه

تر ځان زیاته کمه چار څه پکار نه ده اورده سور — ځان په لویشت کړه چه دي څو دي

چه جامه د چا کوتاه شي یا اورده شي! پیغور — ورکاوه شي هنرمند لره

هر سړی چه په حساب کښي تیر و بیر شي لور — ملامت پرې وایه کیږي لور د/په

چه لائق د ملامت او د تهمت شي! سر تور — ځای لري که بې عزت شي هم

چه عزت حرمت ئي نه وي په جهان کښي اور — هغه هسي ژوندون وسوزه په

بې عزت سړی به خوښ د هیچا نه وي ځني نور — مګر هسي بې عزت وي

خپل مجلس ئي تر جمله مجلسو خوښ وي خمسور — په هر ځای چه سره جمع شي

هر هم جنس د خپل هم جنسه سره خوښ وي خپل انځور — زیب کا هره کشیده په

نا بینا په خپله سیمه کښي بینا وي کور — بینایان په پردي ملك شي کر و

که ته نه یې بد کرداره بد لمنه غور — کښیدې منه بد کردار سړی په

درست صورت د یوه نوك په درد درد مند سي سړي په تور — وران شي ښهر د یوه

چه یو غاښ په خوله کښي زوړند شي یا ووزي نمایه شي هرګور — درسته خوله پرې بد

يو سړی چه په كوړمه كي دچا بدشي واړه ګرم كا/بد شي كه پنځه وي كه څلور

بد كرداره زوی پيدا مه شه له موره حبطه/ابته كاندي ناموس د پلار و مور

هر څوك خپله خوشحالي/خوشنودي له خدايه غواړي باري نه شي دغه كار په زر و زور

خدای پخپل قدرت څوك لوی وڅوك هلك كړه نه چه هر يو ښهر ډيلی شه يا لاهور

د چا تاج زرين په سر تر ملا خنجر وي د چا پنڅه په سر په ملا ټونبلي لور

څوك په آس د پاسه سور وي توغ د وړاندي څوك ږير كلی ګرځاوه شي په خره سور

د ټنګو پورونه هر څوك و بله كاندي بخت هيچا ور كړی نه دی ځبله/چا له پور

اي رحمانه د خدای نوم به چا وا نه خيست كه د خدای چارې په پلار شوې يا په مور

ړ

١

ستا دي خواب آلودو سترګو خواب را څخه يووړ شونډو/لبو دي لذت د مي/ميو ناب را څخه يووړ

نه مي اوښكې پاتي شوې نه صبر په صورت كښي ډيرې بې صبر د مخ آب را څخه يووړ

زړه مي په نغمو نغمو سوری كړ مطربانو عقل ساقيانو په شراب را څخه يووړ

يو ساقي بل يار دريم مطرب سره يوځای شو زړه ئي له ګوګله په شتاب را څخه يووړ

څه شوكه ئي يووړخراب/ خسته دل مي ترې قربان شه نور چا وړی نه دی خپل احباب را څخه يووړ

خط دي تور حرفونه مخ دي پاڼې د کتاب دي ښه ښکاري — شغل د کتاب دي بل کتاب را ښه یوور
خط دي تور حرفونه مخ دي پاڼې د کتاب دي
ښخه یووړ

هر اسباب چه ما ښخه د زهد د پرهیز وو — واړه تا د حسن په اسباب را
ښخه یووړ

کړی ما رحمان په زړه کښي نقش د محراب ؤ — ستا ابرویو نقش د
محراب را ښخه یووړ

٢

خراب زړه مي د دلبرو هوا یووړ — د هوا له وړیو چا زده چه چا یووړ

ګوښې ګوښې شایسته مي زړه وکاږي — زه و کوم یوه ته وایم چه
تا یووړ

چه مي زړه لره د تورو زلفو ځای غوښت — هغه زړه را ښخه ډیرې
ژړا/توري بلا یووړ

د سیلاب په مخ کښي کله د چا خوب شي — شیرین خواب را ښخه
ډیرې ژړا یووړ

هغه عقل چه ئې لاف د خود رایي کړې — په یوه پیاله د میو مینا/ئي
واړه له ما یووړ

هغه رخت چه مي د صبر د سکون ؤ — هیڅ را نه کړه مهوشانو ویړیا
یووړ

که یې یووړ خسته زړه/دل مي ترې قربان شه — نا آشناؤ وړی نه دی آشنا
یووړ

هیڅ نا حق پرې شوی نه دی که حق وایم — معشوقې د رحمان زړه په رضا
یووړ

## ز

١

لکه کاندي په کوترو نظر باز — هسي زه یم د دلبرو نظر باز

زه نور چا وته د راز خبرې نه کړم — بې هغو چه موي مژګان لري دراز

بل بادشاه لره محال دی مُلك د زړونو     مګر مخ د چا محمود شي خال اياز

ستا د زنې تر سيب پوري را ښکاريږي     نورې زنې د خوبانو لکه پياز

د تصوير له ګلوطمع د بوي مه کړه     له منقوشو مرغو نه خيژي آواز

هغه يار که په خپل ناز خوښ و خرم دی/وي     زه هم  خوښ يم هميشه د يار په ناز

هميشه مي لاس نيولي دي دعا کړم     چي مدام دي د يار ناز وي زما نياز

که څوك آه و فرياد ښه ګڼي په عشق کښي     زه په عشق کي دغه کار ګڼم غماز

ښادي هر چيري  د غم په اندازه وي     هسي غم ددې د ښاد په انداز

نيستي واړه د هست په دنبال ګرزي     نه ډوبيږي په اوبو کښي تش جهاز

دا قاعده ده لکه لوړ همره ژور وي فراز     بو صورت دی هم نشيب  شي هم

هميشه مي لاس نيولي دی دا خواست کړم     چه  مدام  دي  د  يار ناز وي زما نياز

چه يکسان ګوري هم شاه و هم  ګدا  ته نواز     هسي يار دی د رحمان غريب

٢

که بې ځايه زرکې نه وکښی  آواز     نه صياد ځني خبر ؤ نه شهباز

ځکه/سکه له دې خبرې هسي   معلوميږي غماز     چه  خپل صوت دی هر سړي لره

د منصور و حال ته ګوره حال ئي څه شو راز     خدای دي فاش د هيچا نه کاندي پټ

دريغه دريغه که ورستي عقل ړومبی وی     د انجام خبرې نه شي په آغاز

نيك عمل د عالمانو نيك فرزند دی قمار باز     خدای څوك مه کړه شراب خور و

چه فرزند ئي شراب خور و قمار باز شي     نور ئي کاږي شي د  پلار په خونه ساز

خدای له هسي زاه ـو زاده امان وکړه          چه بې دین یې دیانت  شي بې نماز

چه منکر پرې اعتراض کولی نه شي          دا دي شعر دی رحمانه که اعجاز

٣

بد اختر به نيك اختر نه شي هر گز مرغچيچ/مرغ چوچه/مرغچه به دُر ګوهر نه شي هر گز

که مکان ئي په آسمان دی/وي غزا وشوه ستاره به شمس و قمر نه شي هر گز

که ئي اصل له يوې زمکي وي څه وشو بيد به سرو و صنوبر نه شي

که همه عمر باران ور باندې اوري خس به گل د پيغمبر نه شي هر گز

له نا اهلو د وفا طمع و مه کړه گنده نل به نيشکر نه شي هر گز

که تور غر له ځايه خوزي و به خوزي ولي نور به مقدر نه شي هر گز

د رحمان په باب چه وشوه هغه وشوه مکرر به دا دفتر نه شي هر گز

**س**

١

وېښته سپين، سترګې تاريکي، غاښ کنډاس نه وکاږې د دنيا له چارو لاس

په هر لوري چه ئي مومې پسي درومې نه په چپ لوري صرفه کړې نه په راس

يو وېښته د عقيدې په تن نشته سر تر پايه هسي ډوب يې په وسواس

خدای رازق بولې/ګڼې او رزق گڼې له کسبه په دا شناخت و ځان ته وايې حق شناس

هسي رنګ په بد صفت يې موصوف شوی/مذبذب صفت موصوف شوې چه هيڅ نه پوهيږم ناس يې که خناس

په دويي کښې به ور نه شې تر توحيده که پيشوا کړې مهتر خضر مهتر الياس

واړه زهر قاتل نغرې که پوهيږې چه ته بې له خدايه نغرې هر انفاس

امر دا دی چه له نهې لاس کوتاه کړې او که نه وي خپسر/خپلسر وګڼه مواس

خير دي دا دی چه له شره وجار ووزې پاس	په دا چاره كښي هيڅ نشته كوز و پاس

كه زما ويل دروغ او كوز و پاس وي	ته پخپله په خپل زړه وكړه قياس

له سړيه غرض واړه سړيتوب دی	نه چه پټ وي د سرو زرو په لباس

څه په دا به عراقي او تركي نه شي	كه په خره باندي څوك سور شي كه په آس

د تشنه خو له اوبو سره مطلب وي	نه تش ايښی بې اوبو د زرو طاس

هر زاهد چه په ريا زهد نازيږي	د څربښت ګمان ئي كيږي په آماس

دا زما عاجز اميد دی كه رب كاندي	په قيامت به مي شفيع شي خير الناس

اي رحمانه كه څه كار دی خو د دين دی	نور كارونه بې وفا دي بې اساس

٢

تير شه درست عمر زما په دا هوس	كه مي ويوښتې چه څوك يې يا څه كس

يو پرسش د هغه يار ما لره بس دی/كا بس/يو او(تي)ي ورلره بس	چي/كه څه كس وي خو يې يوه وينا وي

هزار حيف دی چه په هر نفس ترې تښتم	هغه لور ته چه مي تله دي هر نفس

چه ئي زه په هر نفس له خدايه غواړم	هغه كله كله وينم په ډير پس

كه يو خس وي په محتاجو لكه غر/كروړ شي څوك دي نه كا خدای محتاج د يوه خس

هر مرغه په خپله ځاله/جاله كښي همای دی	كه قارغه كه مښګيرك دی كه ققنس

كه شهباز لره سينه ده د تنزري	عنكبوت لره سينه ده د مګس

خو چه خاورو لره ورشي برابر شي اطلس | که چا غوندی وي اغوستې که/چا

هم هغه مي/يې خندوي چه ژړوي مي/يې ۳ | بل ځوك نشته د رحمان فرياد رس

که ځوك فخر کا په ننگ و په ناموس | دا په عشق کي نه ارزيږي يو فلوس

که اغوستي ئي زري جامې دي څه شو | گڼه يا مرغ زرين دی يا طاوس

که ئي تاج وي په سر ايښی غزا وشوه | په نظر زما هُدهُد دی يا خروس

نه ئي فهم فراست وي نه ئي عقل/علم معکوس | خالي نقش لکه عکس د

نه ئي مغز نه دانه وي په خرمن کښي بوس | عبث هسي په سر لوني خالي

د مجاز له اهله/ياره طمع د خير مه کړه (ا)لوس | تمامي شر و شدت دي دا

وداني ئي همه واړه ويراني ده کيکاوس/ديقيانوس | راشه وگوره مانۍ د

که زما په گفتگوی کښي کم و زيات وي جاسوس | ځوك دي گډ کا په دا ښهر کښي

ساقي جام د باده راوړه چه بيخود شم کښي محبوس | خدای دي ځوك مه کړه په خوديه

که ځوك وغواړي تمامه دنيا واړه | زما يار غوندي به نه وي بل عروس

رحمان حسن د يار وينم په پرده کښي | نه پټيږي نور د شمع په فانوس

**ص**
**۱**

گوره څه بلند مقام دی د اخلاص | چه جهان واړه غلام دی د اخلاص

که له زمکي و آسمان ته خاته گران دي | دا سفر په يوه گام دی د اخلاص

چه خبر کا مخلصان له علم غيبه دا همه واړه الهام دی د اخلاص

د رواج و رسم عمر مدام نه وي لکه عمرچه مدام دی د اخلاص

بې اخلاصه حلاوت د اسلام نشته که اسلام دي خو اسلام دی د اخلاص

څه عجب دی که مستان وي ترې چاپيره د اخلاص هر ساقي څخه چه جام دی

څه عجب دی که هما ئي په دام نښلي اخلاص هر صياد څخه چه دام دی د

پس له مرگه به دا مهر و اخلاص نه وي اخلاص که اخلاص کړې نن هنگام دی د

د رحمان کلام په دا سبب شيرين دی چه ئي هر کلام کلام دی د اخلاص

۲

که تر ستوني دي شي گوټ له جام خاص هغه دم به شې د غم له شيبو خلاص

تل په سپينه جامه ټکی بد ليده شي الخاص ته دا عامې چارې مه کړه (په) خاص

که د ورې نهنگ ځان ته يو لقمه کړی زر به راوړې په تحقيق سره غواص

په لباس به دي آسان په صورت گران شي مشکلات به دي اسان شي له اخلاص

که نغمه د محبت په غوږو واورې په فلک به شې زهره غوندي رقاص

معنوي صورت پيدا کړه که ميړه يې فايده څه ده د بتانو له اشخاص

د بل څيز په خاصيت به هغه گوري چي خبر نه وي د ميني له خواص

چي تارچه ورځني رخت د ميني نه که فهم دار اوسه رحمانه له رصاص

۳

که گوهر د عشق په لاس راکړي غواص بيا هاله يې دی له ما سره اخلاص

په کاله به د رقيب غمونه زور شي الخاص که مي يار کاندي حساب له خاص

په کمند د مستۍ میني د خوبانو خلاص | بندي مه کړې خدای د حشره پورې

په رحمان باندې نظر د کرم وکړې | ای چې یې د پاک الله په دربار خاص

۴

ساقي راکړه ته و ماته جام د رقص | زه آرزو په زړه لرم مدام د رقص

ده وې اوس به د خوښ ساعت په تاشې | مغني راکړ و ما پیغام د رقص

مسقي علم خپل استاد راته تعلیم کړ | رانمایې کړ هر تار مقام د رقص

سرېې پاس تر نهه فلکه څرګندېږي | چې په چا وشي ارشاد اعلام د رقص

چې جلوه پرې د محبوب له لوري کیږي | هرګز نشته په هغه اشام د رقص

څو یې سا په وجود شته عبد الرحمانه | حقیقت به هومبرې نه که تام د رقص

**ض**

**۱**

که ته نه کړې په بل چا باندې غرض | بل به هم نه کا/نه کاندې په تا باندې غرض

که ګدا د بل په غولي غرض نه کړي | سپي به نه کړي په ګدا باندې غرض

په ساحل کشت د هیچا نه ډوبیږ ي | که څوك نه کا په دریا باندې غرض

خلوتیان په خپل خلوت کښې فراغت دي | د رسوا دی په رسوا باندې غرض

دا دنیا په احمقانو ده ودانه | دانا نه کا په دنیا باندې غرض

زه رحمان د عشق په درد کښې هسې خوښ یم | چه مې نشته په دوا باندې غرض

۲

په دربار کوم د ښکلي دلبر عرض | په هردم په هر ساعت مقرر عرض

که قبول شي د مولا په پاک دربار کې | دا په روی د شاه نبي پیغمبر عرض

په مانند د ګړيال په پنځه وخته
په شورش دغه له خوفه د سفر عرض

بې خاونده د کار(و) کله څه کيږي
څه که کار ته هميشه که قلندر عرض

د رحمان بې نبي کله در ښښتن ته
شوی کولی د بل کار سراسر عرض

٣

که مي يار په ديدن سر غواړي عوض
ورقربان شه چي دلبر غواړي عوض

چي هستي واړه نيستي کاندي واصل شي عوض
ګند کچکول دی قلندر غواړي

د دوه په اور به څه حاجت موقوف وي
عاشقي ترې خاکستر غواړي عوض

خپل صورت ورته نافه کړه ته د مشکو
يار مجمر لره عنبر غواړي عوض

د لباس له ښکليو طمع بوسه مه کړه
د بوسې په درکړه زر غواړي عوض

د دې دهر له ټګ‌يه ويره وکړه
د کهتر په ځای بهتر غواړي عوض

د عشق درس څه په اسانه لوسته نه شي عوض
په دا ځای کي زير و زور غواړي

په يوځله به ترې خلاص نه شې رحمانه عوض
سر و مال دي مقرر غواړي

## ط

١

طمع مه کړه په دنيا کښي د نشاط
بيا به نه مومې نشاط په دا بساط

لکه راغله بيا به هسي ځني درومې
دا جهان دی د رهرويو يو رباط

تر هر ګام لاندي کوهی دی د دې دهر
ايښی بويه هر قدم په احتياط

و دانا وته په دا جهان ښکاريږي
هم جنت و هم دوزخ و هم صراط

په عاشق به هيڅ دهشت د رقيب نه ؤ
که ئي نه کړی له خوبانو اختلاط

له کم ذاته بې ديانته بې نمازه
طمع مکړه د نيک د يو قيراط

غم د ترکو تر رحمان هسي چاپير شه لکه وسکښي جامه په چا خياط
۲
نن نګار و ماته راکړ د يار خط وې يې واخله دا مي دی د دلدار خط

د غماز له دوراه تراهي وکړه ځای به بايلې د مکار په جوار خط

چيري نه وي چي يې ځيري په غفلت کړې تل يې لوله په تميز په هوښيار خط

په مدت سره به ستا انجام ته رسي اسان کله دی دا ستا د رويبار خط

د غفلت له خوبه پاڅه بيداري کړه تل و تاته سپارلی د بيدار خط

برابر د خط په حکم قدم کيږده که ته غواړې په عقبی د نامدار خط

له ميزانه که امان غواړې رحمانه تل خو لوله په ډير عجز په زار خط

ظ

۱
اومه کله دي پاخه وايئ واعظ هر چه وايئ واړه ښه وايئ واعظ

دی چه ما له خپله ياره لري باسي نور به څه راته/ورته اومه وايئ واعظ

جاروانه زما له ياره ډير مشکل دي زياتي څه له دوباره وايئ واعظ

په خورو پستو خبرو ئي غلط شوې دا خواره خواړه ترخه وايئ واعظ

څوك به څه باور د ده په نصيحت کا چه له ياره جار واته وايئ واعظ

زه بې عشقه بل يو کار کولی نه شم ډير له عشقه ټښتيده وايئ واعظ

اعتبار ئي په نرم په ګرم مه کړه دا تاوده تاوده ساړه وايئ واعظ

اوريدونکی ئي رحمان د ويل نه يم بهتر دادی چه نور نه وايئ واعظ
۲
بلبلان که له ګلزاره مومي حظ مشتاقان له خپله ياره مومي حظ

زه دعشق له تاوده اوره بهره مند يم سمندر له سره انګاره مومي حظ

د چمن غوټ وا د سحر باد کا عاشقان خو له ريباره مومه حظ

په طلب يې نفع مند شوم له هرچانه تل ښکاري له خپله ښکاره مومي حظ

مجنون بيا مونده خوښي په بيابان کي هر منصور له تيره داره مومي حظ

ځو چي ملک د جهان زير و قدم نه کا حظ په خپل ځای به څوک قراره مومي

شګفته چي د غونچې غوندي سحر وي هغه ژړی به بی شماره مومي حظ

په ښندل د سر مي سر د وصل بيا موند وياري تل له وياره مومي حظ

چي نيولی يې خپل ځان د غم و اور ته رحمان ځکه له انواره مومي حظ

## ع

١

په تندي چه آتش بل کړ مدام شمع ځکه بيا مونده له خلقو اکرام شمع

په انوار ئي مُنَور اهل ابصار شو لا به کله شي ښکاره د انعام شمع

پتنګان ئي لور په لور تر مخ ځرخيږ ي شمع ځکه نه کوي په سول کښي آرام

وسيزه ته ځان زما په شغله/شعله باندي شمع کړه پتنګ ته په رموز کښي کلام

ستا مجلس د خاص الخاصو سر فرازو شمع د رحمان په خير نه مومي هر عام

٢

که دي پرې کړه له وګړيو رښتيا طمع طمع نور بادشاه يې هرګز مه کړه له چا

زيړی رنګ د آشنايی مبدل شي پيدا مه شه د اشنا له اشنا طمع

چي له ښکليو ددې دهر وفا غواړي د نادان په څير يې شي د کيميا طمع

چي مراد غواړي د زړه له مهرويانو ستا په دام کي نيوای شي د عنقا طمع

خدای دعقل جواهر ورته بخښلي طمع له نادانو به څه شان کا دانا

ځکه سپی دفقير پښې او لمن نيسي چي د خدای له دره پرې کا ګدا طمع

له دغه رنځ يې طاعون تبه بهتر دی طمع ای رحمانه خدای دي مه کړه پيدا

## غ

هر يو گل د ستا د باغ روښن تر دی تر چراغ د ستا دباغ روښن تر دی تر چراغ هر يو گل

ستا د باغ و د بڼ زاغ په نظر زما همای دی و د بڼ زاغ په نظر زما همای دی ستا د باغ

د دردمندو په دماغ ستا د در خاورې عنبر دي دردمندو په دماغ ستا د در خاورې عنبر دي د

د عاشق د ټټر داغ په آسمان د عشق آفتاب دی دی د عاشق د ټټر داغ په آسمان د عشق آفتاب

د رحمان د زړه فراغ نه شي نه شي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ نه شي نه شي بې خوبانو

## ف

اورنگ زيب و شاه جهان غوندي اشراف صدقه شه تر منصور غوندي نداف

که دي تن په لويئ لوی دی ته ئي څه کړې قاف مه کړه خدای چه کوه طور شي کوه

بوالهوس دي عاشق ته هوس نه کا دا دروغ دي چه زر دوز شي بوريا باف

د مکې په بزرگي کښي هيڅ شك نشته طواف ولي خر به حاجي نه شي په

که په سل دريابه غسل د ځان وکا صاف گمان مه کړه چه به سپی شي پاك و

کشتي هم چه ډيره ډکه شي ډوبيږي د مسرف په ځان بلا شه خپل اسراف

صابرانو صبر پريښود حريصان شول انصاف نه څه عدل شته په چا/ځان کي نه

دا څلور واړه مذهبه سره يو دي ما و تا په کښي پيدا کړه اختلاف

د همه واړه ملکونو څښتن خدای/یو دی که دوزخ دی که جنت دی که اعراف

شهیدان نه دي هغه خون فروشان دي چه/که خوني ته خون بها نه کا معاف

د کاذب ژبه په خوله کښي وچه ښه ده لکه توره د لرگیو په غلاف

د دیوال په سر به څو زغلي تر کومه دروغژن چه د دروغو وهي/کاندي لاف

آب و تاب د ناکره مهر وي همره/څومره څو نظر پرېږ شوی نه وي د صراف

د دنیا په دولت ناز مه کړه رحمانه دا یو موی دی په نظر د مو شگاف

مدح و هجوه د حبیب و د رقیب کړم رحمان نه زده بله هجوه بله لاف/نور اوصاف

## ق

١

چه پاي بند شه د لیلی په اشتیاق مجنون واچاوه و نورو ته طلاق

چه د می ود مطرب په خوند خبر شه فراموش کړه صوفي نفل د اشراق

جام د میو دی یا رقص د خوبانو په هر ځاي چه وبله جمع شي عشاق

په نسیه ؤ نظر نه کاندي بې نقده که څوك حوري ورته ستایي که/یا براق

چه حاصله د دلبر یگانگي شي د دوي خبرې نه کاندي مشتاق

حرکت له ځایه نه کا لکه شمع که ئي اور د عشق/په سر بلېږ ي په تاراق

خوش وي هسي د خپل یار په درد وغم کښي‌ته به وایې چه بادشاه دی د آفاق

هسي محوه وي د عشق په مي ناب کي چه خبر نه وي په وصل په فراق

لا/که ظاهر په صورت وي په معني نه وي لکه کښلی د لا لفظ وي په اوراق

ځو ئي تن په کار و زار کي فنا نه شي        نه جار باسي  مخ آسونه د عراق

د عراق آسونه کار په اشارت کا        په وهل په کوټل کارکوي/ وي د الاق

چه خدای پوه کړل د ښو په ځنبل/ځنبل پوه شو        چه پوه نه شو نه پوهیږي په شلاق

که ئي سر ځي که ئي مال ځي خدای دي نه کا        د طالب و مطلوب تر مینځ نفاق

د قسمت پارچې/پاسي په لاس نیولی ناست یم        نه پوهیږم چه به جفت شي که به طاق

ته چه پند وایې ناصحه و رحمان ته        کاشکي نور کړې هغه کښلي د میثاق

رحمان خوښ دی د خپل یار په درد وغم کي  ته به وایې چي بادشاه دی د افاق

٢

خدایه څه شوه هغه ښکلي/ی ښکلي خلق          په ظاهر په باطن سپین سپېڅلي/ی خلق

هیڅ خندا مي له دې خلقو سره نه شي          ژړوي مي هغه تللي/ی تللي/ی خلق

خبر نه  یم چه و کومه خوا ته لاړ شه          لیدی نه شي  هغه ما لیدلي/ی خلق

لکه ځګ چه د اوبو په مخ کښي درومي          هسي درومي په دنیا راغلي/ی خلق

دریغه یو ځله خو بیا په جهان/دنیا راغلی          له جهانه په ارمان وتلي/ی خلق

هزار حیف دی چه په خاورو کښي لاړه شي په چووا اوپه چندڼ لړلي/ی خلق

رحمان هسي ګوښه خوند له خلقو بیا موند  چه هرګز نه دی دا خوند موندلي/ی خلق

**ك**

١

چه په زړه مي تور لحد شي د خپل خاك          بې مزه مي شي هم خوب هم مي خوراك

چه د خوب او د خوراك مزه شي ورکه          نور له مرګه برابر شي هغه ژواك

غلط وایئ چه څوك  عمر ورته وایئ          هغه عمر چه تیریږي په پخساك

نن سپیره په  خاورو  ډکه خوله  بهتر یم          چه آخر مي دا خوراك  دی دا پوشاك

ځای لري که ځان ژوندی په زمکه خښ کړم  چه مي پس له مرګه   ځای دي یو مغاك

ګویا شوي دي هغه چه شدني دي          زه پخوا تر هلاکته یم هلاك

زړه چه  روغ وي  ګریوان کله ښیراوه شي  له ګریوانه معلومیږي د زړه چاك

تن و ځای و جامه هله پاك پکار دي          چه وړنبی/ړومبی شي د چا زړه له غیره پاك

سړی بویه چه درون بیرون ئي یو وي        نه هغه چه بیرون زر وي درون لاك

له سړیه غرض واړه سړیتوب/سړي هوښ دی        که په/نه چه سر کښي ئي طره وي یا مسواك

د دنیا چاري همه واړه فاني دي        ځوك یو دوه ورځي خوشحال وي ځوك غمناك

په ساعت کښي ځوك خوشحال کا ځوك غمناك کا        دا خویونه همیشه دي د افلاك

چه څه کاندي واړه خدای دی نور څه نشته        رحمان څه دی څه ئي واك څه ئي ادراك

بې ښه خویه مخ روښی له هېچا نه شي        که هرڅو یې پاکیزه کا په رویمال ځوک

ماتوي مي خوله په سوك خراشي مي زړه په نوك

که ناري وهم که ژاړم        پروا نه لري یو ځوك/چوک

راشئ ګورئ منصفانو        د دلبرو دا سلوك

لکه ګل په لاس د طفل        زما زړه کا/کړي شوك په شوك

د چشمانو په غمزه ئي        ژوبل ژوبل یم ټوك ټوك

د فلك په توسن سور شي        دستار کیږدي په سر هوك

هیڅ اثر ور باندي نه کا        د دردمندو درد و دوك

اي رحمانه چه عاشق شي        ځان دي ژاړي کوك په کوك

۳

زړه مي تراشي د بڼو په تیره نوك        ماتوي مي دودیرش غاښ واړه په سوك

په غمزو د تورو سترګو یم وژلی        ژوبل ژوبل پړوکی پړوکی یم ټوک ټوک

که نارې وهم که خاورې په سر لونم/نولم خوک/چوك | ناروا شه که پروا لري يو

لکه ګل چه ځوک د طفل په لاس ورکا/که شوک په شوک | هسی رنګ دي زما زړه کړو

که له ډيره درد و غمه مي زړه وچوي دوک | ورته هيڅ دي زما درد و زما

درست جهان ئې په غم ډوب کړ سرترپايه | که ګدا دی ددې دهر که ملوک

د آسمان په نيلي سور لکه آفتاب شي هوک | د زربفتو دستار کيږدي په سر

که انصاف لرئ په زړه کښي منصفانو | راشئ ګورئ ددلبرو دا سلوک

زه به ولې د خپل يار ثنا نه وايم غوک | چه سحر سحر نار وهي تل

چه مئين/عاشق د دلبرانو په جمال شوې/شي ژاړي/وژاړه کوک په کوک | ای رحمانه ځان دي

٣

چه علاج کولی نه شي د قسمت ځوك | ترو به څه وايئ و چا ته نصيحت ځوك

هغه چاري چه موقوفي په تقدير دي ځوك | کړی ئي نه شي په محنت په مشقت

که نظر کا و قضا و هم رضا ته | په هيچا باندي دي نه کا ملامت ځوك

د مطلوب جفا وفا واړه هنر دی حکمت ځوك | چي/څه پوهيږي د حکماو په

غم په ځان د چا پيرزو دی بارې څه کا قدرت ځوك | چه د خدای په کړه/کړو کښي نه لري

د ابليس و رياضت ته دي نظر کا ځوك | څه/چه غرور کا په طاعت په رياضت

علت لاړ شي عادت نه ځي له سړي نه چارې/بده چارعادت ثوک خدای دي نه کاندي په بد

زه رحمان د بیلتانه سیلاب یم وړی ثوك ۴ که لاس را کاندي د خدای په محبت

په ښایست زما دیار نه دي خبر ثوك که لاس را کاندي د خدای په محبت ثوك

د دنیا چاري همه واړه فاني دي ثوك که خبر شي پرې به نه ږدي دغه در

چه قبول شي په درګاه د مهرویانو ثوك بر ناحقه خاوري لوني په خپل سر

که زما د یار په مخ د چا نظر شي د هغه په خیر به نه وي بختور ثوك

که هرثو دلبران ډیر دي په جهان کي ثوك و به نه کاندي بل مخ/خوا وته نظر

د دیدن طاقت ئي هیچا ثخه نشته بل به نه وي زما یار غوندي دلبر ثوک

عاشقي یوه پایه ده عجائبه و آفتاب ته کتی نه شي برابر ثوك

له هجرانه بله سخته بلا نشته ثوك دغه کار کولی نه شي هم هر هر

مخ به بل خوا ته هرګز و نه جار باسي ثوك خدای دي نه کاندي زخمي په دا نشتر

و به نه رسیږي تا ته په آسانه ثوك چه شي ستا په خمارو سترګو ابتر

ارمانونه به کوي زار زار به ژاړي ثوك ستا په غم چه خاوري نه کاندي په سر

همره نوم د عاشق ور باندي مه ږده ثوك چه حاصله ګونټه نه کا په شش در

هغه نه کاندي نظر و سيم و زر ته ثوك — چه د يار په غم کښي نه شي قلندر

په گلونو د گلزار به ميل نه کاندي ثوك — چه په لور د خپل آشنا کاندي نظر

چه خوبونه کا د يار په خاکستر ثوك

بې رهبره يون د عشق په لارې ګران دی — دلته بويه چه پيدا کاندي رهبر ثوك

چه بيلتون په سترګو ويني آشنائي کا ثوك — د رحمان په خير به نه وي بې هنر

۵

چه مشغول نه وي د ترکو په جمال ثوك — نور به ثه کا په دنيا کښي اشتغال ثوك

چه ئي قيل و قال له ياره سره نه وي — له نور چا سره به ثه کا قيل و قال ثوك

د بل خط په عبارت به نظر نه کا ثوك — چه نظر وکاندي ستا په خط و خال

چه په اصل کښي خدای نه دی پيدا کړی — ترو به ثه غواړي دا ستاد مخ مثال ثوك

نور خوبان د ستا تر مخ پوري دي هسي — لکه بل کا د آفتاب په مخ مشال ثوك

چه عنقا شو اهل دل په دا دنيا کښي — ترو به ثه وواييئ چا وته احوال ثوك

که عاشق په عشق کښي ژاړي هيڅ ګرم نه دی — په دا هسي درد کښي نه لري مجال ثوك

چي يي قيل وقال له ياره سره وشي خوک — له نور چا سره به نه کا قيل و قال

چي په اصل کي خدای نه دی پيدا کړی — تروبه ثه غواړي د ستا د مخ مشال خوک

سر خروئی دهرسړي په جگر خون ده ثوك | نه هغه چه په سر واچوي سور شال

مخ روڼی دي د عاشق په خپلو اوښکو ثوك | په دانه شي چه ئي مړي په رويمال

سړی بويه چه په نيك عمل نازيږي | نه چه ناز کا د دنيا په ملك و مال ثوك

د دنيا چارې فاني دي مرد هغه دی ثوك | چه نظر کا په حرام و په حلال

هر چه كر كا د اوربوشو غنم غواړي ثوك | له خاطره دي بيرون كا دغه خيال

سړی بويه چي په نيک عمل نازيري ثوک | نه چي ناز کا د دنيا په ملک و مال

که ئي شعر د رحمان مهمند تر غوړ شي خوشحال ثوك | غوړ به نه باسي په شعر د

زه لارغه د ستا په مينه کي شهره يم   نه چي نن کاندي خبرې پردي خپل ثوک

ما دا يو سر دی دا ستا شکرانه کړی   که د سره ماغزه مي خوري په دا ويل ثوک
۶
که په بخت کم بختان نه وای خسته دل ثوک په حضور به له تا ولي بيليدل ثوک

و ديدن و ته دي هرچا رضا كيږي | ولي حكم بې له تا نه لري بل ثوک

که يې لاس د خدای په چارو رسيدلای | بې مقصوده به يو دم نه سهيدل ثوک

دا يو سر دی ما دا ستا شکرانه کړی دل ثوک | بر ناحق مي ويروي په سر وهل/سرو

دا همه شوميت زما دی چي رارسي | ګڼه ته او د چا زړونه بدول ثوک

دديدن په طمع وغولېدم بندي شوم ثوک | ګڼه زه او د هجران سختي زغمل

په هېڅ رنګ به دي له میني منکر نه شم          هرشان قصد چي مي کوي په قتلول ځوک

که مي زړه ستا دمینی نه وای راپېرودی ځوک          په رضا له سره کله تېرېدل

که اثر د محبت ورسره نه وي ځوک          روغ صورت دا هومره زړه زهیرېدل

که په مینه د لیلی مبتلا نه وای غرونه ځنګل ځوک          (دا) غریب مجنون/خوار مجنون په دې بیدیا

مینه هره بلا کاندي (که باور کړې)          ګڼه زه عبد الرحمان هومره ویل ځوک

# ګ

١
زغره واغونده ملا وتړه په جنګ  دغه پَسه معرکه کوه د ننګ

و بې ننګ وته د ننګ خبرې مه کړه          یا ځان وګڼه په خپلو وینو رنګ

ننګیالي چه یو ځل مخ کا په یو لوري          نور هیڅ نه  ویني کوهی وي که ګړنګ

هیڅ له ځانه له جهانه خبر نه وي          چه خراغ په نظر کیوزي د پتنګ

د بلبلو و چمن وته پرواز وي آهنګ          د اور پېښتي و آتش وته غورزنګ/سمندر کا مدام اور وته

که جهان و بې هنرو ته فراخ وي          یو لحد دی هنرمندو لره تنګ

هغه ښهر جوهري لره زندان دی/وي سنګ          چه یکسان وي په کښي لعل و مردار

آسمان زمکه دواړه ژامې د نهنګ دي نهنګ          څه به زیست کا ځوك په خوله کښي د

په ښاد ئي هیڅ ښاد مه شه  که دانا ئي خنګ          غم ښادي دي د دې دهر خنګ په

که رحمان د هغو تلليو وصال مومي تير به نه کا په دا دور کښي يو درنگ

## ل

خراب دل مي بهي غواړي بلا دا شوه چي بهي را معلومېږي کال په کال

۱

ايښی مي پر سر دی ستا د مخ د ميني گل بيا می ټور ليمه دي ستا د زلفو تور سنبل

ته چه آئينه په لاس کښي واخلې حيرانيږې زه له کومه راوړم صبوري او تحمل

ګرزې په چمن کښي منګول ډکه په ګلونو/وړې د گلو خدای زده چه گلونه وړې که زړونه په منګول

هم مي مښک ليدلي هم عنبر دي په جهان کښي شاباش شاباش شاباش ستا په/د زلفو په کاکل

نه به ستا د مخ په څير گلشن وي چا ليدلی نه به وي زما په څير آهونه د بلبل

هسي تغافل کا ستا په جور و په جفا کښي! خلق حيرانيږ ي د رحمان په تغافل

۲

هيڅ مي نه کړه په دا عمرکښي حاصل هسي پاتي شوم مردود و ناقابل

ما لا بوي هم د وصال موندلی نه دی تش په توره مي خدای نوم کړلو/کړ د واصل

هسي ډوب يم د گناه په دريابونو چه په سترګو مي ونه ليده ساحل

له وطنه مي په هر زمان وباسي رقيبان ئي را پسې کړه/کړل محاصل

که بلا ده که جفا ده که وفا ده دا همه واړه په ما کړه خدای نازل

د دنيا په پليټ مي ځان پليت کړ حيف دی دا چه نه عالم شوم نه عامل

توره ږيره مي شوه سپينه زه حيران يم چه رحمان لا نه بالغ شوم نه عاقل

۳

مه غوږ باسه د نا اهلو قیل و قال پکار نه دی قیل و قال د بد سگال

یا به فخر په خپل‌اهل و په نسب کا یا به فخر کا په آل و په عیال

یا به ذکر د لذت او د زینت کا یا به فکر کا د مال او د منال

یا به هسي پوچ ګویي کاندي آغازه چه مضمون ئي نه مردار وي نه حلال

د دانا او د نادان صحبت دی هسي لکه ګډ شي وبله لعل و کوتي/تی لال

لکه لعل او کوتي/تی لال چه وبله ګډ شي یا صحبت شي د عیسي او د دجال

هغه عمر چه تیریږي بې هم جنسه ترو به څه وي د هغه عمر احوال

د دنیا چارې فاني دي مرد هغه دی چه خبر شي په ثواب او په وبال

اباسیند لا څه محال لري په تله کښي د دنیا د چارو هیڅ نه وي مجال

د دنیا چارې په مثل خواب و خیال دي ثوك به څه کا اعتماد په خواب و خیال

لکه مال و مُلك په خوب کښي ور څرګند شي خو چه ویښ شي نه ئي ملك وي نه ئي مال

لکه څګ چه د اوبو په سر لیده شي که ئي واخلي هیڅ ور نه شي په چنګال

لکه دود چه غرونه غرونه څرګندیږ ي تار په تار شي په یوه نري شمال

لکه یخ چه د سړو په زور شي جمع هیڅ ئي نه وي د آفتاب په مخ مجال

یو ساعت باران بیا شین آسمان شي لکه ابر د پسرلي د پشه کال

په یوه ساعت ئي ساز بیا ئي ویران کا خاوري خټې دي په لاس کښي د کلال

د مجاز په معشوقو کښي وفا نشته ما هزار ځله وکښلی دی دا فال

اعتماد ئي په ښاد و په غم مه کړه نه ئي هجر په قرار دی نه وصال

ګاهي تور کودی په مخ باندي را کيښ شي     ګاهي را کيښ شي په مخ باندي رويمال

لکه مالګه چه څوك کيږدي په اوبو کښي     زه هم هسي سر زده يم په مثال

چه د مرگ و تاخت و باخت وته نظر کړم | صورت وينم د ميږ ي په څير پا مال
خراب دل مي بهي غواړي بلا دا شوه | چي کهي را معلوميږي په هر کال
که وصال مي د يار بيا موند هاله سيال يم | ګڼه نه يم زه رحمان د هيچا سيال

۴

بيلتانه دي هسي خوار کړ زما دل | چه له ځانه ئي ويزار کړ زما دل
لاس وپښې د خلقو نيسي دعا غواړي | ميني هسي منت بار کړو زما دل
بې سببه چا آزار موندلی نه دی | تا په څه سبب آزار کړو زما دل
عاشق همره داغونه دي پرې ايښي | چه تمام ئي لاله زار کړ زما دل
چه د زلفو په کمند سره دي را کيښ | په بلا دي ګرفتار کړو زما دل
ستا چشمانو په کښي هسي مقام ونيو | چه له غيره ئي ويزار کړو زما دل
زه رحمان خو منت بار د عاشق يم | چه مين ئي په دلدار کړو زما دل

چه له نازه پوشيده لري چشمان خپل | څه به ويني مقتولان و مظلومان خپل
چه ښکنځل راته په قهر قهر کاندي | دا لا وګڼي په ما باندي احسان خپل
ګفتګو په اشارت کاندي له نازه | کله اسم د چا اخلي په زبان خپل
په ګريبان باندي چه ټک وهي غوټ! خپل | عاشق کښيباسي لاسونه په ګريوان
خريدار ئي له حيرته بې شعور شي خپل | چه د حسن رخت څرګند کا په دکان
چه خپل مخ په آئينه کښي ور څرګند شي ځان خپل | خود پخپله سرفرو کاندي په
چه هر څوك ئي عاشق وته هوس کا خپل | ګويا لوبې کا په دين و په ايمان
هيڅ صرفه د چا په سر و په مال نه کا | ما ليدلي دي پخپله مطلوبان خپل

مجنون ملك د عاشق هاله خپل كړو خپل		چه په اور باندي ئي وسوه خان و مان

دا مقام دی د هغو رنګه عالمو زيان خپل		چه هيڅ نه ويني په سترګو سود او

آفرين د عاشقانو په همت شه خپل		چي ور تير تر سر او مال ويني جانان

هيڅ د سترګو غړولو خوند ئي نه وي خپل		چه رحمان په سترګو نه ويني جانان

۶

تور ليمه مي د فراق په ژړا سپين شول شول		دوباره د زړه په وينو کي رنګين

ما وې زه به لا ديدن کړم د يارانو شول		خبر نه يم چي ياران په کوچ تعيين

چا پتنګ غوندي ځان واچول و اور ته		ځوک ژوندی لکه بلبل په آتشين شول

و مرده وته د مرګ خوار شوې پيښې اندوهګين شول		او ژوندي په زندګ کي

د قضا سپاهيانو هسي لاس په تاخت کړ شيرين شول		چي پايمال هزار خسرو هزار

چي قدم يي په آسمان ايښود له نازه		هغه هسي ناز پرور زير زمين شول

چي مدام يي په سنجاب دپاسه خوب کړ بالين شول		اوس په ځمکه بې بستره بې

د رحمان خاطر به ولي پريشان نه وي شول		چي پريشان ورځخه جمع همنشين

**م**

١

په ليمه کښي مي مدام		ګرځي عکس د ګلفام

تور د سترګو مي ګلګون شوه        په آرزو د ګل اندام

بې د سترګو له خونابه        نه باده لرم نه جام

په طلب د دلارام کښي        ما و نه لیده آرام

زنخدان ئي خدای کوهی کړو        ورپریوځم/ښوئیږم په هر ګام

که ئي خال د مخ غلام دی        زه غلام یم د غلام

که په عشق کښي ناکام ږیر دی        دا ناکام دی زما کام

خوښ یم زه په عاشق کښي        که نیك نام یم که بد نام

په یار کښي مي قبول دی        ملامت د خاص و عام

د دعا په عوض غواړم        د خپل یار د خولې دشنام

تر ښکنځلو به ئي ځار کړم        دغه خپل دعا سلام

تلخ ګفتار ئي راته خوږ/خوښ دی        تر کشمش و تر بادام

هم هغه مي مسیحا دی        چه ئي را کاندي سلام/پیغام

مخ د یار ماه تمام دی        رحمان ولیده تمام

۲

که مي ونماځي ساقي په یوه جام        تر دا هور ته به نور څه وي احترام

بس/ښه دی ما لره دا فیض د شرابو        چه پرې ووینځم دا دلق ازرق فام

می خواري که په عالم کښي بدنامي ده        ما تر پېښو دی لاندي کړی ننګ و نام

په میزان یو سر لعل وي بل سر کاڼي        مساوي ده عاشقي په خاص و عام

عاشقان د سپین رخسار د تورو زلفو        څه پروا لري د کفر د اسلام

په مجنون باندي قلم راغلی نه دی　　　که حلال ئي په مخ ورشي که  حرام

حلال عشق دی  په رحمان باندي راغلی　　　په حلالو کښي مدام وي احترام

۳

و محمود وته نظر کوه مدام　　　چه غلام کړ خپلې میني د غلام

د نیکانو مدعا خو  نیك عمل دی/وي　　　ساعت نه ګوري که صبح وي که شام

چه د زړه حضور ئي نه وي په لمانځه کښي　　　پکار نه دی مقتدي وي که امام

چه مجنون غوندي په مینه کښي صادق وي　　　رحمان وایم/وایي په هغه باندي سلام

هم نغمې کاندي هم رقص کا هم خاندي　　　د رحمان په شعر ترکې د باګرام

۴

د هجران له ډیره غمه ولي نه مرم　　　له دې هسي رنګ ماتمه ولي نه مرم

چه یو یار له بله یاره جدا کیږي　　　د دې دهر له ستمه ولي نه مرم

چه هرهر/په هر سحر زما په ژړا خاندي　　　له دې هسي صبحدمه ولي نه مرم

یار چه یار په سترګو نه ویني خو مرګ دی　　　ترو زه بې خپل صنمه ولي نه مرم

چه په لړه ګرم شا کاندي و ګل ته　　　له دې بې وفا شبنمه ولي نه مرم

چه د مرګ خوار په خوا لرې رحمانه　　　لا پخوا تر دغه دمه ولي نه مرم

۵

که په سر د هغه یار له لاسه سنګ خورم　　　خدای دي نه کا چه به بله خوا ته ځنګ خورم

عاشقي او ننګ و نام دي وبله/سره لري　　　څو به عمر واړه غم د نام و ننګ خورم

خدای و ما  وته شیرین کړه تر شکرو/تر نیشکر کړه　　　که د یار له لاسه غشي د خدنګ خورم

د  آشنا د بیلتانه په کار  و بار کښي　　　همیشه په تندي توره د فرنګ خورم

نوکري د معشوقو کوم په عشق کښي　　　مهینې نه د بهلول نه د اورنګ خورم

شين لوګی مي په سر چتر دونهه تخت دی ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم

هم په دا چه له خود شمه بې خوده خورم د هجران په غم کښي لېپ لېپ بنګ

لکه څوك چه نعمتونه د دنيا خوري رنګ خورم زه د يار دجفا زهر/کوڅې خاوري په دا

واړه زهر شي زما تر ستوني درومي خورم بې له ياره که همه لاچي لونګ

زه رحمان به څو ژوندی په دنيا ګرځم/پايم چه په بلو لنبو/لمبو/لمبه څرخ لکه پتنګ خورم

۶

سر مي په کار نه دی چي يې ستاترسر قربان کړم زر راڅخه نشته چي يې ستا په پښو ډېران کړم

کار د عاشق اول ډېر راته آسان ؤ اوس هسي حيران يم چي دا کار به په څه شان کړم

ډېرو خلقو لافي ستا دميني دي وهلي هيڅوک هسي مه شه لکه زه چي يې په ځان کړم

نه لري مرهم د عاشق زخم بې تسليمه دا څه هسي درد نه دی چي يې دفع په درمان کړم

نه کا هيڅ دښمن په دښمنانو هسي چاري ستا په عاشق کی لکه زه چي يې حيران کړم

ولي کافر نه وي مسلمان به شي که خدای کا هرچاته حسن ولطافت د ستا بيان کړم

وړاندي وي که ورستو آخر هسي معلو ميږي ستا له بېرحم به زه رحمان لاس په ګرېوان کړم

۷

زه دا هسې ديوانه او مجنون چا کړم له رواجه له رسومه بيرون چا کړم

نه پوهيږم چه دا چاري په ما څوك کا ليونی د خپل نګاه په افسون چا کړم

كومې سترګې كوم  با ﻨﻪ كومه غمزه ده  ډوب شهيد غوندي په خاك و په
خون چا كړم

توان  توفيق  خو  د  فتنو را  څخه  نه ۈ  په فتنو د تورو سترګو مفتون چا
كړم

رحمان هيڅ له خپله ځانه خبر نه يم  چه دا هسي رنګ زبون و محزون چا
كړم
٨

صبح و شام مي لاس نيولي دي دعا كړم  خواست له خدايه ستا د مهر و
د وفا كړم

هيڅ دروغ رښتيا مي نه زده كه باور كړې  ستا دپاره هم دروغ و هم ر ښتيا كړم

واړه ته يې خندول كه ژړول كړې  زه پخپله نه خندا  كړم  نه ژړا كړم

كه ته نه يې بارې وايه راته څوك دي  زه دا هسي سرتور سر پښې يبلې/ليونى
ومجنون چا كړم

خوب خندا د بيلتانه په زمكه نشته  څه آرام به په دا دشت كربلا كړم

هره ورځ چه مي تيريږي ستا په غم كښي  زه په هره ورځ  پوهيږم  چه غزا كړم

يو ويښته مي د صورت كوږ شوى نه دى  هسي رنګ دې پټ پنهم په زړه ادا

زړه كه يو  وي  ما خو تا  لره دركړى  مګر نورو لره نور زړونه پيدا كړم

چه مي واغوست سر و پاى د عاشق  زه رحمان دي سروپاى بې سروپا كړم
٩

دا ستا درد به په هزار درمان ور نه كړم  دانسته  به  دغه  سود  په  زيان
ور نه كړم

كه څوك را كاندي دنيا و عقبى دواړه  عاشقي به دي په اين و  آن ور نه كړم

څو مي تيغ په پهلو نه دى لګيدلى  ستا  پهلو به و رقيب آسان ور نه كړم

كه يو ځله مي ستا زلفي په لاس كښيوزي  يو ويښته به دي په درست جهان ور نه
كړم

که مي چيري لاس د ستا په بوسه بر شو کړم | دا نعمت به د جنت په خوان ور نه
---|---
څو ونه وينم ستا سترګې که يي خدای کا | عزرائيل لره به هُمره څان ور نه کړم
معشوقې د عاشقانو دين ايمان دی کړم | زه به چا لره خپل دين ايمان ور نه
ستا تر زلفو پوري نورې زلفې څه دي نه کړم | په خاشاك به د چمن ريحان ور
په رحمان دا ستا د لبو می حرام دی | څو د خپلو وينو جام تاوان ور نه کړم

١٠

دا يو څه رنګه ژوندون دی نه پوهيږم پوهيږم | خواب و خيال دی که افسون دی نه
جام د لبو/ميو چه د څان په وينو مومم | ترو زلال که جګر خون دی نه پوهيږم
د پتنګ او د بلبل تر ميان حيران يم پوهيږم | مخ دي اور دی که ګلګون دی نه
په شانه سره دي تار د زلفو بيل شه پوهيږم | که غوڅ شوی مي نارون دی نه
عشق په هسي رنګ مقام باندي قائم کړم نه پوهيږم | چه وصال دی که بيلتون دی
د خپل زړه و علامت وته حيران يم پوهيږم | چه موسی دی که قارون دی نه

د رحمان څيره/چهره ئي زيړه تر کنګو/زعفران کړه خدای زده عشق دی که طاعون دی نه پوهيږم

١١

بيا دي نوي شراب څښلي دي پوهيږم | په رخسار دي ګل کرلي دي پوهيږم
که هزار ځله لاس سره کړې په نکريزو | تا زما په وينو وللي دي پوهيږم
معرکه زما د مرګ نه ده نو څه ده | رقيبان چه تا بللي دي پوهيږم

څه حاجت دی چه دي خط په ملا لولم چه زما په باب دي کښلي دي پوهيږم

ته خپل جور و جفا څه وايې و ما ته ما همه واړه ليدلي دي پوهيږم

چه رقيب او تا غورونه و بله وروړه ما هغه ساعت ژړلي دي پوهيږم

رقيبان ځکه تيری په رحمان کاندي چه تا خوا/تا په خوا پوري نيولي دي پوهيږم

١٢

چه له مرگه بې پروا يې په هر دم دغه هسي غم دي هير دی په کوم غم

نور همه واړه غمونه به دي هير شي که يو ځل در باندي راشي دا ماتم

چه زخمي ئي سبا نه مومې په بيعه مرهم مفت مونده شي نن ساعت هغه

د مرهمو تياري در/ور لره بويه چه لا نه ئې د اجل په تيغ کړم

چه د تن له سرايه درومې توښه واخله ترا دا سرای په هورته سرای نشته محکم

د دې لارې تله څه هسي آسان نه دي مشکلات دي په هر دم په هر قدم

که دي ويره شي له ظلمه له ستمه ته هم مه کړه په هيچا باندي ستم

که اميد لرې له رحمه له کرمه ستا هم بويه په هر چا باندي کرم

له هر چا سره چه کړې هغه به مومې د هيڅ تخم ميوه نه درومي برهم

اجر واړه د عمل په اندازه وي دغه دواړه سره يو دي هم درهم

اوس د ستا رضا نيکي کړې که بدي کړې نيك و بد دي دواړه کښوی شي په قلم

خدای د رزق په زيرمه مه هيروه کلك شه تر سړي دسړي رزق دی مقدم

که ګڼې چه په حرص سره څه زيات شي زيات به نه شي د يوې ستني تر سپم

که هزار رنګه تالاش و تردد کړې د قسمت شوي به نه کړې زيات و کم

ډير هوا و حرص مه کوه خدای یاد کړه دی کافي دی د عرب و د عجم

په تا فرض عبادت د خپل ښتن دی نه لښکرې خزانې نې ملک و حشم

ټوك (ډوډ)روټ یوه شړ درلره بس ده نور همه واړه اسراف دی مسلم

له خوراکه غرض قوت او لا یموت دی نه چه غوښې غوړي وریجې یا غنم

له پوشاکه غرض خپسر/خپلسر پټول دي نه اطلس و سقلات تاج و علم

که حرص در باندي زور شي مرگ را یاد کړه دا علاج دی دغه رنځ لره محکم

د لحد د تاریک علاج به څه کړې چه ته دلته کښې ویریږې په تورتم

غفلت هیڅ مناسب نه دی د سپین ږیریو صبحدم خوب روا نه دی په وقت د

مار چه سوړې لره ورشي گوره سم شي ته د گور په غاړه راغلې نه شوې سم

خم قامت د دنیا کار کړې عمر واړه او په دوه رکعته نفلو نه شوې خم

ځان پخوا تر هغه وژاړه که مرد یې چه په تا باندي ژړا کا نور عالم

نور عالم چه په تا ژاړي انصاف وکړه بې انصافه ته په څه یې خوښ خورم

که زه نه وایم ته خود سترگې روښې کړه آدم کور دي خور شه ته چارپای ئې که

اې رحمانه لکه ته چه په خدای گرم یې هسي گرم بل به نه وي په جهان کښي

پس له مرگه به دي هورې هم خانه وي څه پوهېږې یا به مار وي یا لړم

۱۳

ځو به صبر په جفا د یار کومه ځو به موم د نمر و مخ ته گرځومه

عاشقي او صبوري سره دروغ دي زه دا لافې په دروغ څه رنگ وهمه

ته و ما ته نصیحت مه کړه ناصحه زه دا خپل تخم خپل ځان لره کرمه

ما خو زده چه مينه اور ده خدای مئين کړم   دانسته خپلسر و اورته اچومه

سررشته مي خدای د يار په لاس کښي ورکړه   په هر لور چه مي را کاږي
پسي ځمه

د آشنا د ميني لاس زما گريوان دی   زه په دا کار کي هيڅ عذر نلرمه

عاشقانو باندي حق د معشوقو دی   حق به ولي په باطله بدلومه

ما چه مينه د يار فرض په خپل ځان کړه   ترو له فرضو غاړه څه رنگ غړومه

دا څه ژوند دی چه يار نه وينم په سترگو   زه رحمان په جهان سترگې غړومه

۱۴

په يوه غمزه د سترگو ئي فنا شوم   سر ترپايه بې بنياده بې بقا شوم

ما د يار له غمه دم وهلی نه دی   که مي دم وهلی نه دی هم
رسوا شوم

ښه چه تن مي توی تومنه شه په عشق کښي   هاله څاڅکی د شبنم وم اوس
دريا شوم

زه د يار و مخ ته گورم يار و ما ته   چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم

په هجران کښي که گدا وم کند په غاړه   په وصال کښې ئې بادشاه د
امرا شوم

په خپل کلي په خپل کور کي مي غربت دی   په صدف کي يتيم دُر غوندي يکتا شوم

مستوري راڅخه يووړه مستو سترگو   رحمان ځکه په وگړيو کي رسوا شوم

بادشاهي د گدايانو په دعا شي   زه رحمان ځکه بادشاه يم چه گدا
شوم

۱۵

د خپل ځان له خاکسار (نه) بلند شوم   لکه گرد هسي شهسوار د هر
هوا يم

کمين هسي کامل کړم چي زه درومم   لکه ځمکه درست جهان راسره بيايم

ماچي خپل معراج د دار د پاسه ولید | د منصور په څېر رښتیا وینا (به) وایم
د منصور او زما هومره تفاوت دی | چي ده نارې کړې په جهر زه خفیا یم
له عیانه هیڅ حاجت د بیان نشته یم | زه رحمان به په خوله څه وایم چي دا
۱۶

تر هغه حده په هورته بد سړی شوم اغزی شوم | چه د درست جهان په سترګو کښي
دنیا واړه خپله زیست و روزګار کاندي شوم | خو یو زه په دغه بار کښي کوږ لرګی
تمامي جهان لمن راڅخه نغاړي! کودی شوم | سپین زړوکی مي اغوستي تور
هیڅ حاجت د هنر نشته و نصیب ته شوم | غزا وشوه که مهمند که/یا داودزی
د نوح زوی هم د یو نیک نیکه لمسی ؤ | ګڼه زه هم د یو نیك نیکه نمسی شوم
کل وسواس له احتیاطه پیدا کیږي | زه له ډېري هوښیار نه لیونی شوم
اوس عطا د آدمیت راباندي وشوه! شوم | چه رحمان د هغه یار د کوڅې سپی
۱۷
په ښه خوئ له بد خواهانو بې پروا یم | په نرم لکه اوبه د اور سزا یم
و هر چا ته په خپل شکل ځرګندیږم | آئینه غوندي بې رویه بې ریا یم
۵-قناعت مي تر خرقې لاندي اطلس دی ظاهر ګدا یم | پټ د درست جهان پادشاه
۶-د غنچې په څیر په سل ژبو خاموش یم | لکه بوئ هسي په پټه خوله ګویا یم
په ژړا مي د خپل یار دیدن حاصل کړو | د شبنم په څیر له ګل سره یکتا یم

۴-هم په دا سپينو جامو به معلوميږم | لکه ابر هم ګوهر يم هم دريا يم
---|---
۳-دراز عمر مي حاصل شه له راستۍ | لکه سرو مدام سبز و تازه پايم
که چا لار د عاشقۍ وي/ده ورکه کړې | زه رحمان د ګمراهانو رهنما يم

۱۸

زه له دې دنيا نه تلوني په شتاب يم | لکه پاڼه د خزان پښه په رکاب يم
که هزار آبادي کړمه په جهان کښي | غرض دا چه نهايت خانه خراب يم
که مي اصل د حياتو له اوبو دی! | بيا خو دا چه د اوبو په سر حباب يم
دا جهان قصاب خانه کړه خدای و ما ته قصاب يم | پای بسته ولاړ په غولي د
چه د خدای له معرفته خبر نه شم/شوم يم | معلوميږي چه يا ديو يم يا دواب
که صورت مي دسړي دی زه ئي څه کړم | په معنی کښي د چارپايو په حساب يم
لکه بت چه په رڼو سترګو اوده وي يم | هسي زه په بيدارۍ کښي وړی خواب
په طاعت په عبادت مي زړه يخ نه کړو | هميشه د معصيت په اور کباب يم
سر د خدای و عبادت ته ايښوي نشم | مدام ډوب د ګناهونو په درياب يم
چه و خپلو ګناهونو ته نظر کړم | سزاوار د هر عذاب و هر عِتاب يم
لکه څوك چه په خره سور وي مخ ئي تور وي خښتن پوري بې آب يم | زه هم هسې پخپل خدای/تر
غزا وشوه که ګفتار لرم/کوم په ژبه | زه رحمان چه کردار نه لرم کذاب يم

۱۹

که هزار ځله نزدې د زړه په ياد يم زه چه يار په سترګو نه وينم نا ښاد يم

که يار سل ځله وعدې د وصال وکا زه له ډيري تلوسې بې اعتقاد يم

په جفا و په وفا ئي لارغه نه شي پُر حذر د ناز پرور په کړي داد يم

د بې نيازو په نياز څه اميد د کړو دی يم زه پرون سلطان خسرو وم نن فرهاد

که د يار له لاسه اور را باندي بل وي لکه شمع مستقيم په خپل اِستاد يم

بې مينې قراري را باندي زوګ دی يم شپه او ورځ په حرکت کښي لکه باد

که همه عمر مي يار په غيږ کښي ناست وي زه له غمه به د هجر په فرياد يم

يو زمان مي د زړه مراد موندلی نه دی پيدا کړی خدای په اصل کښي نا مراد يم

د وصال په يوه کال مګر بر پای شم د هفتې په هجر هسي بې بنياد يم

چه ئي نوره نتيجه نشته بې غمه حق حيران د عاشق په دغه داد يم

په وصال کښي مي د هجر طمعه نه وه! يم اوس حيران متحير په دا فساد

بې له عشقه چه مي پړی شه د پوزې ګڼه نور له جملګي قيده آزاد يم

که مي پيري که مي پلوري چاره نشته زه رحمان د ښايسته و خانه زاد يم

۲۰

که مي ځوك په فقيرئ شميري فقير يم که مي ځوك په اميرئ شميري امير يم

د دلبر و صدقې لره ئي غواړم هسي نه چه په دنيا پسې زهير يم

د خرقې خدمت مشکل دی او که نه وي خير/ځير يم زه هر دم و دغه چاري وته

هم پند اخلم هم پند وايم و هر چا ته زه د ځينو يم مريد د ځينو پير يم

په هجران کښي خيال د يار را سره مل دی   په زندان کښي د يوسف سره اسير يم

په خندا کښي مي ژړا ده لکه شمع   له عالمه پټ پنهم د ځان په وير يم

آزادي تر دا په هورته بله کومه/نشته/نوره څه ده؟   چه مدام په خپل اشنا پسي زهير يم/ بندي د يار د زلفو په زنځير يم

چه هميش په غوږ ناري د هجران اورم   رحمان ځکه خپل يار و مخ ته ځير يم

خوشحالا و دولتا مي غلامان دي   زه رحمان په پښتو ژبه عالمگير يم
۲۱
زه د يار په درد و غم کښي غرقاب خوښ يم په دا درد/اور کښي بې طاقت و بې تاب خوښ يم

که ډوبيږم په اوبو که په اور سوزم   د سرو شونډو په آتش و په آب خوښ يم

چه د يار دخط و خال ننښې پکښې وي   زوړند سر په مطالعه د کتاب خوښ يم

تر دا پوچه گفتگويه چه ئي اورم   په نغمه په ترانه د رباب خوښ يم

د ريا تر ناقبوله عبادته   د ساقي په ميو مست و خراب خوښ يم

چه نه علم نه تسبيح نه تلاوت وي   له دې هسي بيداريه په خواب خوښ يم

د طوبی د ونې سوری مي خوښ نه دی   ستا د مخ په لنبو سوی کباب خوښ يم

خاموشي که هر څو لويه مرتبه ده   زه له يار سره په سوال و جواب خوښ يم

د يار هيرې غمخوار يم عاجز کړی   رحمان ځکه په خوردن د شراب خوښ يم۲۲

زه د یار په دردوغم کښي شادمان یم
یم

لکه گل د پریشان په وقت خندان

ته زما و بې کس ته نظر مه کړه

خدای ساتلی لکه گنج په بیابان یم

لکه ونه د ځنگل په میوه پوره

په ویرانه ویران کښي آبادان یم

یو ویښته مي د صورت بې عشقه نه دی
کاروان یم

ځوکیدار په هر نفس د خپل

د وصال مرغه د اوښکو دانو راکړ

لکه دُر و لعل په غاړه د خوبان یم

د کاملي عقیدې له برکته

د دونه په غاړه ناست شاه جهان یم

رو ښنائي مي په طلب کښي شوه حاصله
روان یم

شپه و ورځ لکه آفتاب په لار

د آشنا د تورو زلفو صفت ځو کړم

پلی سر په لویه لار د هندوستان یم

بې مینه مي هیڅ حال د صورت نشته

لکه بې مال و متاعه تش دکان یم

د هوس بلبل ویسا را باندي نه کا
یم

د افلاس په کبل ډکی د خزان

و یارانو/دلبرانو وته خاك تر تلو لاندي

د دې نور جهان په سر لکه آسمان یم

چه د یار په مینه/دیدن سر و مال ښندمه
یم

خلقو واورئ زه هغه عبدالرحمن

په هر دم کښي نوې نوې تماشې کړم
یم

زه رحمان د خدای وکړو وته حیران

۲۳

چي هر دم له خپله ځانه گریزان یم

هم په دا لکه دریاب د درو کان یم

مرگی تریخ دی چي ژوندون دچا شیرین شي زه خورسند د یار تر وصل په هجران
یم

ناداني مي دانایي شوه لکه طفل
یم

په ناپاکو گوهره کي پاک دامان

چي د نفس د حرص ملک مي مسخر کړ		په هوا دپاسه تخت د سليمان يم

تن مي څه کړې چي زړه ياررا څخه يووړ		بيهوده د خالي خوني نگهبان يم

لکه گل چي په نار مات کړې اويزاند وي		زه هم هسي د ژوندو دمړو تر ميان يم

کله ځان راته ولي کله عاصي شي		نه خبر په خپل کمال نه په نقصان يم

خپل جانان مي هسي نقش دی په زړه کي		نه پوهيرم چي رحمان يم که جانان يم
۲۴
ژوبل ژوبل د خوبانو/ترکانو په نگاه يم		لا تر دې نه زيات غوځيرم چه پناه يم

چه يوسف غوندي هزار په کښي پراته دي		بنديوان د هغه سيب ذقن په چاه يم

چه ئي قد و قامت ووينم په سترگو		عندليب په سر د سروې د خپل آه يم

د سپين مخ د تورو څڼو له رغبته		منت بار د هر سفيد د/او هر سياه يم

لکه څوک چي په خره سپور وي مخ يې تور وي		زه هم هسي تر خپل خدای پوري روسياه يم

د رقيب خبرې وړم د يار دپاره يم		دعا گوي هم د نيك خواه هم د بد خواه

ښاخ د زلفو ئي پخپله خدای راټيټ کړو يم		گڼه زه د يار  تر قد پوري کوتاه

بې له عشقه که مي عيب که مي هنر دی		نه خبر په عبادت نه په گناه يم

ځان هر گوره ناکاره را ځرگنديږ ي		له هغي ور ځې را هيسي چه آگاه يم

بې صبر که يار په وصل کښي مهجور کړم يم		د پسرلي په مرغزار  کښي  وچ  گياه

له اوله ټټر ووهم بيا آه کړم		په نارو نارو خروس د صبحگاه يم

په  جذبو جذبو ئي را کښوم/ښکم و ځان ته		هغه يار مي کاهربا دي  زه ئي  کاه يم

لکه بار د ونې پوخ شي څني رژي زه هم هسي بار تړلی سر براه یم

اوس مي ځای په دا جهان کښي پاتي نه شه خوځیدلی تر چهل و تر پنجاه یم

د رقیب علاج آسان دی بلا دا شوه زه رحمان له خپله یاره ناویسا یم

۲۵

زه یو دم د ستا له غمه بې غم نه یم بې غم ستا له ذکره فکره یو دم نه یم

هر زیارت لره چه درومم مراد مي ته یې زه زائر د بتخانې د حرم نه یم

ستا د در په تورو خاورو باندي خوښ یم یم بې تا خوش په تماشا د ارم نه

چه د ستا په تماشا یم خبر/خمر شوی نور خبر په تماشا د عالم نه یم

بې د ستا له زیبا مخه و بل مخ ته منتظر د یوې ستني تر سپم نه یم

که دا ستا د ښکلي مخ عاشقان ډیر دي نه یم زه په واړو کښي اول یم دویم

که له غمه دي و نه مرم هاله وایه! چه یا دیو یم یا دواب یم آدم نه یم

زړه مي ستا په غمزه غوڅ دی غزا وشوه یم که په لاس او په پښو روغ یمه ګرم نه

سم قامت لکه الف یم په راست کښي یم لکه غشی څه فساد لره سم نه

خم د زلفو یم محراب دکبرو وروځو زه/څه د مار و د لړم په څیر خم نه یم

که مي کم و بیش له لاسه واقع کیږي یم سړی شکم لرم بې شکم نه یم

زه رحمان د بیلتانه له غمه/لاسه ژاړم واقعه ده ډیره ګرانه هیڅ ګرم نه یم

ن

۱

هسي تیز درومي دوران ګویا برق دی درخشان

د آسیا په څیر ګردش کا په زمین باندي آسمان

ککر□ دي د سړيو        چه وړيږي تر دا ميان

پيدا کيږي فنا کيږي        نه ئې سر شته نه سامان

نه ئي حد و نه پايان شته/نه يې سر شته نه سامان        نه ئې حد شته نه پايان

ځني ړول وهي ښادي کا ځني وير کا د خپل ځان

ځني شمعه غوندي ژاړي  ځني ګل غوندي خندان

که يې ګورې يو ګلزار دی        که ئې ګورې يو بيابان

که يې ګورې يو ګلشن دی        که يې ګورې يو زندان

يوه هسي تماشا ده!        چه ئې هيڅ نه شي بيان

کيفيت ئي مونده نه شي        په دليل و په برهان

چه ئي کومه خوا رفتن دی        يا ئې چيرته دی مکان

خدای خبر دی په دا علم هيڅ خبر نه دی رحمان
٢

ډېر ياران وو د گل خان و جمال خان پکار نه شه يو په وقت/وخت د زارستان

د همه واړو يارانو مخ دې تور شي که به څوك وبله ياري کا په دا شان

چه يو يار په سيوري پروت وي بل په اور کښي وهغو ته به څوك څه وائي ياران

هيڅ تعريف يې په دا ژبه وايه نه شي صد رحمت شه په يار هم د گل خان

تر دا په هورته/په دا هورته د يار شرطونه څه وي چه په اور کښي دواړه وسوزي يکسان

چه له آله له اولاده سره وسول خدای دي نه کا څوك دا هسي مظلومان

چه په اورکي يو د بل دپاره سوزي ما ليدلي نه وو هسي مخلصان

څه رنگ شوخ و هغه اور و هغه خلق چه ئي مړ نه کړو د اوښکو په باران

الغياث دی الغياث دی الغياث دی چه انسان کا هسي ظلم په انسان

د نمرود چارې مي وليدې په سترگو چه ئي اچول و اور وته نبيان

هم دې زمکي هم آسمان ته تعجب کړم چه نه زمکه په نارو شوه نه آسمان

هم دې لويو لويو غرونو ته حيران يم چه ونه لوښته له وېخه سر غلطان

له دې خپله سپيه نفسه مي زړه بد شه په جهان چه اوبه څښي يا خواړه خوري

عالم وايئ چه قيامت به په جمعه وي وليد ما په يکشنبه په دا دوران

هزار حيف دي چه دا هسي رنگه چاري واقع کيږي د دنيا په سود و زيان

سر بند نه ؤ گويا دښت کربلا ؤ چه سيلاب شو د سرو وينو پرې روان

په عیسی و په دجال کښي گناه نشته        دا مکرونه دي د نفس و د شیطان

عزیزان ئي ځبله ووژل پخپله        دا همه واړه تقدیر دی د سجان

هسي نه چه دا ئي وکړه نور به نه کړي بادشاهان        چه ئي زړه شي هغه کاندي

شاه عالم اعظم وگوره چه ئي سخا کړ/ښخا کړو په خونونو واړه ملك د هندوستان

و دارا و اورنگ زیب وته حیران یم        چه ئي څه چاري واقع شولې تر میان

د حسن حسین غزا دي څوك په زړه کا        چه همه واړه په تیغ شول شهیدان

د دوي غوښي اوښکو وینو رغړولې        بې حسابه هسي خلق شه طوفان

هر چه اهل د دنیا دي حال ئي دا دی        که سړی دی که پیری دی که حیوان

آدم زاد په زمکه یو بل سره وژني ماهیان        په دریاب کښي وبله غوښې خوري

لکه غوښې چه ماهیان خوري په دریاب کښي مرغان        په هوا کي هم دغه کاندي

خزنده و پرنده دي د دې دهر        همه واړه یو تر بل مشت و گریبان

مرداري د دې دنیا خو هم دغه ده        ځکه بیرته ځني گرزي درویشان

مکاري د زمانې څه هُمره نه ده        چه رحمان ئي چا ته وکاندي بیان

٣

دنیا دار د دنیا کار کا زه د دین        خوانین زما په ملك دي خوشه چین

هیڅ کم نه دی تر سپین مخ د/مخیو دلبرانو بلکه ښه دی زما شعرنمکین

مراد له تورو سپینو واړه دلبري ده        موقوف نه دی دغه کار په تور و سپین

مرتبه د سلیمان چه چا له ورشي نگین        هیڅ پوره نیمگړی نه دی په/پر

چه رنگين رنگين مضمون پرې کښلي نه وي څه پکار دی د بياض ورق رنګين

خوند په خوله دی نه په ښکه/څښه نه په خواږه دی آب و خور که د چا تلخ وي که شيرين

غرض خوب دی که په خس وي که/يا په خار وي    څه حاجت دي په بستر و په بالين

مصر توره هم په بد غلاف کښي زنګ شي    خدای ځوك مه کړه د بدانو همنشين

څه عجب که په ورځ مهر په شپه ماه شي    د رحمان آشنا چنان دی يا/هم چنين

۴

که ترې ولوښته شاهان و سلطانان    هيڅ نيمګړی په چا نه شه دا جهان

که هزار هزار فنا شي په يو دم کښي    بيا پيدا شي په يو دم کښي هزاران

د رفتن د آمدن حساب ئي نشته    لکه بحر چه بهيږي بې پايان

يو د بل په غم نه نرم وي نه ګرم    هم د هغه زده چه ورئي شي په ځان

پيغمبر غوندي صاحب تر دنيا تير شه    دا دنيا يې ويرانه نه شوه په هجران

چه دا هسي عالم لاندي شه تر خاورو!    د چا ياد وي ماو تا غوندي سګان

که غلبيل کړم د تمامې دنيا خاورې    بيا به نه مومم دارا و شاه جهان

بوي د نام و د نشان ئي پاتې نه شه    چه دعوی ئي کړه د نام و د نشان

که دروغ وايم ته ورشه نظر وکړه    د خپل پلار او د نيکه په ګورستان

چه ئي ته په دواړو سترګو ښکلولې    ګوره څه شوې هغه خولې هغه لبان

چه مدام ئي په قربان قربان بللې    اوس دي غږ در باندي وکا چه قربان

د رحمان و سوزان شعر ته حيران يم    چه ئي اور بل شوی/کړی نه دی په ديوان

۶

ته چه هسي ګاه يې ترش ګاه يې خندان له عاشق سره کينه کړې که احسان

له احواله دي چا نه زده چه به څه کړې کله جور کله لطف کړې عيان

رنځ راحت د عاشقانو واړه ته يې دا دروغ دي چه وصال دی يا هجران

هغه شونډي چه خوړې دي تر شکرو له ښکنځلو ئي عار نه کا عاشقان

رجوعات د ښايسته ؤ چا ته نه وي هرگز نه وي سرکوزي د سروې شان

دغه هسي رنګ ښايست لکه چه ستا دی نشته دا رنګه ښايست د هيڅ انسان

قصد تر هسي حده ولي کړې ګل رخه چه له ډيره نازه وژنې عاشقان

د مريې صورت څه روغ له کاڼې نه وي نشته کاڼي څخه ستا د جفا توان

و هر چا وته چه ستا قوت رسيږي هلته نه رسي قوت د درست جهان

ستا له جوره زهره نه لري چه آه کا که کشور د عاشقانو شي ويران

خوار حيران لکه عاشق دی ستا له دره/درده خدای دي هيڅوک هسي نه کا خوار حيران

لکه ډير وايئ د وصل راحتونه دغه هسي د فرقت دی سخت زندان

د رخسار ښنې دي واړه د خورشيد دي دی روښان چه ئې درست جهان له نُوره

له هوسه دي هر ګل کره خندا شوه چه ئې وليد ستا د حسن ګلستان

کله وي چه نصيحت کاندي عاشق ته که له حسنه دي آګاه شي زاهدان

رنګ د روی دي لري رنګ د سرو ګلونوتورې څڼې دي ښاخونه د ريحان

سياهي د نوي خط دي هسي زيب کا لکه ښکلي واړه توري د قرآن

و کوهي ته چه لغزش کا کل خطر وي کل خيريت دی کوهی ستا د زنخدان

که د درو تجلي ده ډيره ډيره دندان دُر تاريك شي چه ظاهر شي ستا

ته سلطان د ښايسته ۀ يې دلبره دا نور واړه ښايسته دي نوکران

که دا نور ښايسته ستوري ويل کيږي روښان ته خورشيد غوندي صورت لرې

له هر چا چه اوريده شي دغه وايئ چه ښايست دي زره نه لري نقصان

در و لعل شو ويل د رحمان ځکه چه د ستا د لعلو شونډو شه ګويان

۷

چيرته د يار شونډي چرته غم د دل و جان بدخشان چيرته کوټي لال و چيرته لعل د

پاك ومنزه دی عشق د نفس له خاصيه زنخدان چيرته چاه د ګيډي چيرته چاه د

لر تفاوت نه دی د رند د زاهد کونډي يتيمان چيرته ځلمي/زلمي جونه چير/چرته

واړه بې وقوف دي چه څوك دين په دنيا پلوري عمر جاوادن چيرته پنځه ورځې چيرته

ځار شه د هوا و حرص خيال تر قناعته چيرته ملك د مصر چيرته ده د غلامان

نه شي د ملنګو د خانانو سره کلي عبدالرحمن چيرته عزيز خان چيرته ملنګ

فراموش مي کړ/دی د ستا په مينه ځان ځان لا څه دی بلکه عمر جاودان

لکه زه چه ستا د در په خاورو خوښ يم شاهان همره عيش و طرب نه لري

لکه زه چه ستا د غم پنډونه اخلم پهلوان همره پنډ اخيستی نه شي

هسي بې سر و سامان يم ستا په عشق کښي چه آ ګاه نه يم په سر و په سامان

هسي بې شرابو مست يم ستا په مينه چه خبر نه يم په/له زمکي په/له آسمان

دا به څه رنګ شي چه ته د کال وعده کړې په ما نه تيرېږي بې تا يو زمان

تمامي عمر د ستا په طلب ورك يم لټوم دي په هر ښهر په بيابان

كه له دره ئي شړې كه ئي پرېږدې ته ډير مئين دی ستا په مخ عبدالرحمن

د سړي صورت څه روغ د کاڼي نه دی نشته کاڼي څخه ستا د جور توان
٨
څو به شميرم زه غمونه د هجران همره ډير دي لکه ريګ د بيابان

د سړي د دښمن طاقت مي نه وه خدای را پيښه د ښمني کړه د اسمان

لکه څوك چه د اوښ بار په ميږي کيږدي هسي زه يم په خپل غم پوري ناتوان

لکه اور د بيلتانه چه په ما اوري چا ليدلی ګڼه اور دی په دا شان

د يار غم به مي هغه سړی په شمار کړي چه شميرلي ئي وېښته وي د خپل ځان

كه څوك وايئ حال دي څه دی په هجران کښي په خاطر دي تصور کړي دوزخيان

نا قرار زړه/روح مي د يار په هوا والوت تش صورت مي په ځاي پاتي شه پريشان

د يار دم/ياد مي زړه په غټو سترګو يووړ لکه بت په ديوال کښلی يم حيران

ما وې زړه د مومن عرش دی خبر نه وم چه به عشق زما دا عرش کاندي ويران

عاشق تر هغه حده بې هوښ كړم چه نه هوښ لرم نه صبر/سر و نه سامان

لور د لوره/په لور ئي د تهمت په غونډو ويشت شم ملامت را باندي وايئ درست جهان

چه دا حال درباندي نه وي ورغلی په ويل به څه ګروهيږي د رحمان

لکه غم د آشنايۍ په ما ورېږي ياد به نه وي د چا هسي ګڼ باران
۹
ورکه عاشقي شه هم ئي نوم هم ئي نشان زه ئي هسي خوار کړم لکه خاك/شګې د بيابان

زه د عشق په کار کښې تير تر سره هم له مال يم دريغه/کشکې که په سر مي دا مشکل کا خدای آسان

کښېوتم د عشق په آدم خورو ګردابونو نه په وړاندي تلای شم نه په بيرته ګريزان

رنځ د عاشقۍ چه زه ظاهر کړم و طبيب ته هيڅ ويلي نه شي طبيبان و حکيمان

شهرياران ددنيا واړه ګدايان دي زه د عشق په اور کي سوی سرګردان

نه مي حال و چاته ووی چه دا څه دی راشه عالم واړه په فکرت تللی حيران

د عشق اور راباندي بل شو خدای خبر دی اوس رسوا شوم په عالم کي چاک ګريوان

راشه عاشقي مه کړه رحمانه او که نه وي تل په اور به ناست ئې که پادشاه ئې د جهان
۱۰
خان سلطان د دې جهان آخر درومي خوار حيران

د قضا په ځېل ټړلي په مثال د بنديوان

شيرين ځان ور څخه درومي نه ئي زور شي/رسي نه ئي توان

که ښندي مال و ملك واړه هيڅ رنګ نه مومي امان

نه ئې مل نه ئې حامي وي درد ئې ورشي په خپل ځان

درمانده وته ولاړ وي وزيران او وکيلان

هيڅ دارو يې کړلی/کولی نشي کوز کوز ګوري حکيمان

بادشاهي ئې پاتې کيږي زړه ئې چوي په ارمان

چه ئې روح له تنه بیل شي
نور پرې ژاړي فرزندان

یو ساعت وربانديې ژاړي
آخر صبر کا/کړي خواران

بیا ئې غسل لره واخلي
په تخته باندي عریان

په جامو ئې هوسيږي/خوشحاليږي
مرده شوی او غسالان

چه له قبره ئې بازګشت شي
مال ئې یوسي وارثان/میراثیان

په مسند ئې دعوی کاندي
هم دوستان هم دښمنان

سهيل به يې تالا کا/ئې تالا کاندي
هغه خپل مصاحبان

نام نشان ئې هسي ورک شي
لکه عین بې نشان

نه ئې نقش پاتې کيږي!
نه ئې اسم په جهان

دا دنیا آب روان ده!
نه شي نقش په آب روان

که هزار رنګ آبادي کا
نهایت خانه ویران

لکه باد هسي به تیر شي
کاروبار ددې دوران

دا بیان دور و دراز ؤ
کوته/کوتاه قطع کړ رحمان

١١

که پخوا تر آشنائیه وای بیلتون
ما به نه ؤ له چا کړی پیوستون

چه مي یار په سترګو ولید ما ګمان کړو ژوندون
چه هم دا ساعت مي بیا مونده

په نیمګړي داد خبر د فلك نه وم
چه به بیا شي په ستنه را څخه ستون

نن ساعت چه له دې حاله خبردار شوم
ځکه تر نن ورځې بهتره وه پرون

هر زحمت چه په ما راشي شکرانه کړم
عاشق تر هسي حده کړم زبون

اوس که لاس زه وبله/پر بله مرم هیڅ سود نه کا شوه بیرون
هغه چاره چه له لاسه

لکه نمر په ځلورم آسمان ځلیږي — محبت ئي له حجابه کړم بیرون

چا چه رخه/ننښه له ښه مخه را کوله — اوس دي سور په نیلي ګرزي د ګردون

په دا هسي حال کښي څه رنګ صبوري شي — چه د ښمن دي کامراني کا ته محزون

که په صبر سره تور کاڼي لعل کیږي — لعل ئي مه کړه/کړې په دا هسي جګر خون/شواخون

د دنیا هوس په ما باندي حرام شه — د هوس هسي کړم شپه په میږ تون

دریغه یو ځله هغه زما په حال شوای — چه و ما ته لولوي صبر و سکون

و رحمان ته ځان هغه ګړ آسمان شي وي سرنګون — چه د ستا په غم کښي ناست

**و**

١

هیڅوك مه شه ګرفتار د تورو زلفو — مه اسیر شه په کفار د تورو زلفو

هم په شان د تورو زلفو به پریشان وي — هر چه کاندي انتظار د تورو زلفو

د محشر په عالم کله قراري وي زلفو — څوك به څه غواړي قرار د تورو

څو ئي صبح د قیامت دمیده نه شي — ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو

مګر شمع د سپین مخ شي باندی بله — ګڼه نشته بل/نور انوار د تورو زلفو

تار په تار کا د عاشق د خاطر خونه — چه حلقې شي تار په تار د تورو زلفو

چه تمام جهان ئي ښتی دی په دام کښي زلفو — څوك به څه کاندي انکار د تورو

زه له کوم یوه کمنده سر وکاږم — کمندونه دي هزار د تورو زلفو

په تندي د محتسب کا دُره ماته — چه پرې راشی دره دار د تورو زلفو

هُمره زړونه ئي پېیلئ په هر تار دي — چه تسبیح کړه خدای زنار د تورو زلفو

ملك د هند و د حبش ئي واړه زير کړ چه پيدا شه شهريار د تورو زلفو

ښامارانو غوندي ګرزي په ګنجونو نشي هيڅ په زړه کي ډار د تورو زلفو

که بل مار چيچل په لاسو يا پر/په پښو کا په زړه خوله لګوي مار د تورو زلفو

د رحمان تر قلم مښک و عنبر(ووري) اوري چه آغاز ئي کړ اشعار د تورو زلفو
٢
او ښکي نه لري حساب زما د سترګو بې حسابه شه سيلاب زما د سترګو

سياهي مي همه واړه سفيدي شوه هسي پريولی شه کتاب زما د سترګو

که مي سره دي که مي سپين دي که مي تور دي اوښکو يووړ هر اسباب زما د سترګو

چه رخسار د هغه يار را څخه پټ شو/شي حبطه شو/شي آب و تاب زما د سترګو

چه ګداز/ګوزار ئي په دا ګرمو اوښکو نه شه مګر کاڼي دی حباب زما د سترګو

چه مي نقش په زړه سرې شونډې د يار شوې کان د لعلو (شؤ)شه ګرداب زما د سترګو

که نور خلق د آفتاب په رڼا زيست کا مخ د ترکو دی آفتاب زما د سترګو

ما ئي خيال لره ابلق د سترګو زين کړ قدم نه ږدي په رکاب زما د سترګو

لکه تښتي (چي) وحشيان له مردمانو هسې وتښتيده خواب زما د سترګو

ما رحمان چه سترګې روڼي په خپل يار کړې اوس محال شو/دی اجتناب زما د سترګو
٣

هر ساعت زما د غوږ په تاوولو څنګلو | د فلك لاسونه شنه شوه تر
همره غم د بيلتانه را باندي راغی! نه په کښلو | چه حساب ئي نه په خوله شي
هغه سترګي چه نرګس و هم بادام وې/دي | تيرې توري دي زما په قتلولو
هغه شونډې چه شيرينې دي/وې تر قندو موند بې ښکنځلو | ما هيڅ فيض ترې/ځني بيا نه
دا کاره کاره باڼه او کړې وروځي | نور څه نه کا بې کړو کړو وهلو
په شپه نوکې د عاشق په وينو سرې کا منګلو | سبا پوري کا نکريزي په
دا زما د قاتل لاس دی نه پوهيږم ګلو | که تر باغ وتلی ښاخ دی د سرو
دريغه مرګ ئي په دنيا کښي نيمه خوا شوای ګلو | ښايسته غُنچې ئي پرې يستې د
هسي بند شه په کمند د تورو زلفو خلاصولو | چه حيران يم د رحمان په

۴

تا چه رنگ د میو ورکړ و لبانو خورانو | اور دي/يې پورې کړ په کور د مى
چه دي جوړه کړه ليندۀ د کږو وروځو غزالانو | څو/خو به ښکار کړې په حرم د
چه دي اسم د ځنځير په زلفو کښېښود | معطر دي کړ دماغ د ديوانګانو
په رخسار چه دي د خط غبار څرګند شه خاکسارانو | سر بلنده شوه فرقه د
کاږه غشي واړه بيرته ځي له ښې | زه آزار کړم ستا کږو کږو مژګانو
چه زما د يار تر مينځه جدايي کا | کاڼی پريوتی په خونه د بدانو
که مي چيري خواست د خدای په در قبليږي | سوال به زه د عمر کړم د مهوشانو
سور پيزوان دي په سرو شونډو هسي زيب کا | لکه جيم په قلم ښکلی کاتبانو
د سرو ټيک دي شهزاده په جبين پروت دی | شينکی خال دي محاصل په بنديوانو
دواړه ليچي دي وکښلې مصر تورې | در پوهيږم سر به پرې ګړې د خوارانو
ستا له غمه په ځان زړه د رحمان سوزي | لکه شمع په زيارت د شهيدانو
ستا د خولې له حقيقته صوفي څه زده ۵ | له دې رازه څوک خبر وي بې رندانو
چه کو ټلي وي/دي په تيغ ستا د چشمانو | سر حلقه دي د جمله ؤ شهيدانو
ستا وصال د سر پريکړيو دی دلبره | ژوندي نه مومي جنت بې مردګانو
د پير/ي سيوری عاقل لره ضرر دی | دا مقام دي د سر تورو ديوانګانو
په سرپوش محل کښې نور د آفتاب نه وي | دا دولت دی نازل شوی په ډاګيانو
هم په دا زما له سترګو ويني څاڅي د لبانو | چه دي نقش په کښې رنګ دی
مشکين خال دي په سرو لبو هسي زيب کا | لکه مُهر په مخزن د در مرجانو

ما سوای له یاره هر چي/چه دي رحمانه واړه کفر دي په دين د عاشقانو

هر اشنا چي مخ پنهان کا نه يې مومم که يې غواړم شپه او ورځ په سپرو پليو

۶

که نظر کا څوک په کار د درويشانو خود به ووينې وقار د درويشانو

په دغه لارې به ورشي خدای رسول ته که څوك يون کاندي په لار د درويشانو

هر گفتار به ئي د خدای په در قبول وي چه قبول ئي وي گفتار د درويشانو

هسي گرم بازار بل په جهان نشته لکه گرم دی بازار د درويشانو

په يوه قدم تر عرشه پوري رسي ما ليدلی دی رفتار د درويشانو

هُمره خلق ئي زيارت کا پس له مرگه چه بازار وي په مزار د درويشانو

پادشاهان د دنيا واړه پرې پراته دي لکه خاورې په دربار د درويشانو

هر بهار لره خزان په جهان شته دی خزان نه لري بهار د درويشانو

د جنت د باغ گلونه به ئي هير شي که څوك ووينې گلزار د درويشانو

چه دنيا ئي کړه د خدای د پاره ترکه صد رحمت شه په روزگار د درويشانو

د قارون و حال ته گوره حال ئي څه شه راشه مه کوه انکار د درويشانو

په هر چا چه د غضب لينده کا کښته/خښته/ښخه خطا نه درومی گوزار د درويشانو

درست ديوان د رحمان (زار)ځار تر دا غزل شه چه بيان ئي کړ کردار د درويشانو

۷

د پېزوان غمی دي زيب کا پر لبانو دواړه زلفې دي چورږ د ملنگانو/ځنځير د عاشقانو

دا سور ټيک دي شهزاده پر اوربل پروت دی شينکی خال دي معاني د بنديوانو

دواړه لب دي ښايسته تر سرو ياقوتو		شرمولي ده ږلۍ ستا دندانو

تور اوربل دي لکه مار په جبين پروت دی		شينکی خال دي مواصل د رنځورانو

د پيرۍ سيوری عاقل لره ضرور دی		دا مقام دی د سرتورو ملنګانو

ستا وصال د سر پرېکړيو دی دلبره		ژوندي نه مومي جنت بې مردګانو

د ليلى دکوڅې سپى بر مجنون پېښ شو عينانو		په باربار يې ښکلا وه پر دوو

ماسوا له ياره هرچي وي رحمانه		واړه کفر دی په دين د عاشقانو

۸

که هرڅو په صحرا سر شوم هم په کليو تلليو		بيا مي نه موند هيڅ خبر د هغو

خدای زده کومي خواته لاړل حال يې څه دی خبر نه يم د ګړنګ له پرېوتليو

له دې غمه مي زړه چوي که څوک خبروي		لږ په ما هم خبر وکړئ خدای ساتليو

پس له دې به چيرته درومئ ځای مو کوم دی؟		راته وايئ د دنيا په سرای راغليو

ګوندي ستاسو په مخ زه هم ښښنده شم پسندليو		لاس د خدای و درته نيسئ

هيڅ خبر يې په هيڅ لوري موندی نه شي پليو		که يې غواړې شپه او ورځ په سپرو

له ناپوهه خلکه نه کيږي پوښتنه		زه و تاسي وته وايم پوهېدلييو

خبر نه يم چي په باب مي کښلي څه دی؟ ښکليو		زه رحمان په اندېښنه يم له دې



۱

د دلبرو په درګاه		نه حرمت لرم نه جاه

غوڅوي مي د زړه ولې		د چشمانو په نګاه

همره قدر مي پرې/هم نشته لکه قدر د گیاه

هيڅ خبر له ځانه نه يم چه ئي څه لرم گناه

يو نظر را باندی نه کا از برای عند الله

که له غمه ئي سر پټ کړم بل سر نه لرم پناه

د رحمان په څير دی و مه/نه شی حال احوال د چا تباه

۲

چي ئي وليده ستا حسن بې حسابه له دې قصده تاو پيدا شه له آفتابه

په آرزو دي د نرگس سترگې ځلور شوې غنچه سره د زړه په وينو شوه غرقابه

ستا په غم مي سترغلي سرې سرې ناغې شوې يا خيمې دي سياه پوشی سره طنابه

که دي زلفي په مخ پيچ و تاب شوې ښائي ويښته څه طاقت لري د اور له تابه

زه چه خدای د ستا د غم سره آشنا کړم خوشحالي مي نور نايابه شوه نايابه

سترغلي مي د فراق په ژړا سره شول د سبزې اثر ئي پاخيده له آبه

ماه خورشيد دي په ښايست پوري شرميږي ځکه مخ فنا کوي تر کوه قافه

زه دي پيژنم په اصل کښي خاکي يې ځان به څو څنډ ې په گوته له ترابه

څو دي خيال د آشنا گرزي په ليمه کښي خبر زده کړه ته د اوښکو له سيلابه

د رحمان به بخت هاله له خوبه ويښ شي که سترگې ورته پورته کړې له خوابه

چي دمخ و آب و تاب ته يې نظر کړم را ته هيڅ شي د گلونو آب وتابه

۳

ورځ دي تيره په شوم کړه شپه له خوابه خدای به کله يادوې خانه خرابه

په شتاب شتاب دي تله دي که پوهيږ ې غافل مه شه د دې عمر له شتابه

دلته دم و قدم دواړه په حساب دي            پل غلط (له)د لاري مه ږده بې حسابه

راستولی خدای حساب دی په کتاب کښي            خبر زده کړه له حسابه له کتابه

ته و خپلو نیکو بدوته نظر کړه            چه بدي دي څو تیری کړي له ثوابه

په هغه جهان به څرنګ/څنګه (جو)څواب وُکړې            چه په دې/دا جهان عاجز يې له (جو)څوابه

عاقبت به تورو خاورو لره درومې            ځان به څو څنډې په ګو(ته)تو له ترابه

زه دي پیژنم په اصل کي تراب/خاکي يې            ته چي ځان څنډې په ګوتو له ترابه

څو په دا جهان اوبه له تندي نه شې            په قیامت به دي سینه نشي سیرابه

دکاغذ په کښتۍ سيل/سَير به کړې تر کومه/رحمانه دا کښتۍ به دي مرګی کاندي غرقابه

چه آفتاب یوه نېزه شي بیا به څه کړې            اوس چه سېوري لره/له ورتښتې له آفتابه

په آزار د چا راضي مه شه رحمانه            كه خلاصی په قیامت غواړې له عذابه

۴

په ورځ ناست ئي بې طلبه/مطلبه            په شپه خوب کړې بې ادبه

لاس دي وخاته له دواړو            هم له روزه هم له شبه

نه دلې شوې نه هورې شوې            تر مینځ ورک/ړوب شوې مذبذبه

عبادت دي په ریا شه            په مذهب کښي بد مذهبه

مدام بند يې په سبب کښي            بې خبر له مسببه

واړه تشي شلونبې/شړومبې شاربې            خبر نه شوې له مطلبه

ته اوده وربادي سور یې            آس دي یون کا بې جلبه

تن دي تش په توره و(سو)سره            آس دي داغ کړ بې منصبه

| | |
|---|---|
| د راکب چه واك پردی شي | سود ئي څه وي له مرکبه |
| له ژونديو سره ناسته/ناست يې | له مرده ؤ مرکبه |
| هلک لوی شوې په اوبو کښي | اوبه نه پيژنې کبه |
| لکه کا ہی يا کودری | په درياب کښي تشنه لبه |
| نا آ ګاه ځان آ ګاه بولې | دا خبره ده عجبه |
| مراد له زهده معرفت دی | نه تش ځان وژل اقربه |
| د رحمان شراب له عشقه | نه له کور و/انګور نه له عنبه |

۵

ته شها يې شکر لبه          گل رخساره سيم غبغبه

په نادرو ښکلي نادره          په عجبو ښکلي عجبه

په جمله ؤ معشوقو ښکلي          بوالعجب يې منتخبه!

بې زيوره ښايسته يې          بې ترتيبه مرتبه

دغه داد د الهی دي          بې تالاشه بې طلبه

آب حيات چه حيات بيا موند          ستا د شونډو له سببه

مخ دي سپين تر سپين سبا دی زلفې توري تر تور شبه

ستا د مخ عرق دانه  وو/ده          زينت رانيو/داره له کوکبه

د  ښايست (مُخی)مخ دي نشته          تر مشرقه تر مغربه

د وصال مونده دي گران دي          مگر فضل شي له ربه

چه د رب فضل پرې وشي          هغه خلاص شي له غضبه

دا دولت د خدای په داد دی          مونده نه شي له نسبه

عشق څه هسې علم نه دی          چه حاصل شي له مکتبه

مکتب حال د مذهب وايئ          عشق سوا دي له مذهبه

د عاشق مذهب هم دا دی          چه دم نه وي بې مطلبه

ستا د حسن په صفت/تعريف ښکلي          رحمان گونگ دی/شه له ادبه

۶

په هر زړه چه د يار مينه شي غالبه          بله مينه ئي هيڅ نه وي مناسبه

نوری واړه مرتبې به ورته هيڅ شي          که خبر شي څوك له هسې مراتبه

لياقت ئي هر وگړي څخه نشته          عاشقي يوه پايه ده عجائبه

د طلب له کوتاهيه  ويره وکړه          که هر څو دي لار کوتاهه ده طالبه

عشق ثرگنده خزانه ده خوار هغه شه چه ثرگنده خزانه شوه ترې غائبه

غوره خط د مهرويانو تر خط نشته که هزار رنگ كتابونه كړې كاتبه

هيڅ ئي مه پوښته له فرضو له واجبو په هغو چه عاشقي كړه/كړي خداى واجبه

عاشقان تر سر و ماله يار ته تير دي خداى دي دا طايفه نه كاندي كاذبه

زه رحمان د خپل صاحب په رضا زيست كړم ځه پكار دى بنده/دي د بنده بې خپل صاحبه

٧
تا چه په دا تورو سترگو وكاته و ما ته مخلوقاته زړه دي زما تور كړ له دې نوره

ما خو چه ته وليدې هغه ساعت مي ووې نوره به مي مينه د زړه نه شي له تا ماته

شيخ/شېخان و زاهدان چه نصيحت و ما ته وايئ مخ له محسناته نه دي خبر شوي ستا د

څه شوه/وشو كه زه انگشت نما شوم ستا په مينه قاضي ته هم ملا ته لا تر ما نه خوښ يې و

مرم په دا چه ما له تا جار باسي هغه خلق و/درزغلي خوا ته بيادي په ديدن ترما ړومبى/وړنبي ځغلي

زه رحمان چه دي وينم/يار ووينم وايم خدايه خير كړې ذاته گډه ښاپيرۍ ده د بنى آدم له

٨

که د عقل څه اثر لرې و سر ته | لاس په سر مه شه د هر ګېډې و در ته

په نظر د هغو خاورې سره زر کیږي | هر چه نه لري نظر و سیم و زر ته

بې منته جام د زهرو ښه ښه دي | نه هغه چه منت بار وي/شي و کوثر ته

د یوسف له حاله زده کړه دغه پسه | وایه حال د زمانې و برادر ته

دې فلك و چاته هیڅ بخښلي نه دي | چه ئي نه دي راپیرودي ځني بیرته

د خروار دعوه ئي وګڼه ممکنه | که رتڼ یا جو دانه به ئي وي درته
که یې پور وي د یوې جو دانې درته

که له خدایه دي وخلق وته مخ شي ته | له فردوسه به دي مخ شي و سقر

همیشه به در په در ګرزې رټلی | د استوګنې ځای به بیا نه مومې چیرته

د دې سست بدن منت په رحمان باندي بل درته | چه له خپله دره تلای نه شي

٩

چه نظر کړم د خوبانو و رخسار ته | آئینه غوندي حیران شم و دې کار ته
حق حیران د خدای په کړه شم و دې کار ته

له دهشته ئي ریبار پوښتیدی نه شم | خدای زده څه به ئي ویلي وي ریبار ته

خلوتیان لکه برده پکښي خرڅیږي ته | غږ ئي نه خیژي/خیږي د حسن و بازار

ته چه ما پو ښتې د یار له حقیقته ته | څوك د یار خبرې کاندي و اغیار

درد و غم د عاشقڼ څه ځمره نه دي | چه ئي عقل د چا رسي و مقدار ته

زه و یار چه سره خپل غمونه شمار کړو | یار و ما ته حیرانیږ ي زه و یار ته

ددنیا چارې همه واړه په وار شي | ما د یار غمونه نه پریږدي و وارته

رحمان هسي وزګار چيري دی له عشقه وزګار ته چه غور ونيسي ناصح غوندي

١٠

ما د دهر غم وهلی دی په لته د پيالې د صراحيه/حـ له برکته

که اوبه دي د حياتو په تورتم/ظلمت کښي ساده رويو و ما راکړي بې ظلمته

هغه يار چه و ما جام د ميو راکړ د دښنو ويني مي وڅښې بې شدته

بې خود د دنيا له غمه خلاص کړم لار مي بيا مونده بيرون له شش جهته

د د ښمن په دښمن مى خندا کيږي لکه شمع د مقراض له خصومته

بې خيري مي کل په خير باندي/ده شميرلې د زمرى په خوله کښي ناست يم فراغته

مړ بهتر دی تر هغه چه څوك بې پت شي/وي په يار کښي دي خدای نه کا څوک بې پته

دا ستا چه په اور سوزي مراد يې دا دی زه په اور کي سوې ښه يم نه بې پته

خدای هاله د سړي ياد شي چه درد مند شيکمه نه ده دردمندي تر عبادته

په تدبير او په تلاش کله مونده شي چي موقوف وي هغه کار په عنايته

که څوک سل نصيحتونه ورته وکا غوږ يې نه وي د هيچا په نصيحته

زه رحمان په سل حلقو د زلفو بند يم لا د پاسه سور پيزوان شه بله نته

١١

ستا په مخ کي څه/چه حساب د جمال نشته ځکه ما څخه د صبر مجال نشته

ته د سر و د مال ويره په ما مه کړه ويره ما څخه د سر و د مال نشته

زه په دا سبب له ويرې سره ريږدم نشته چه ستا ويره کښي ثواب دی وبال

که وعده د يوې چارې يو ساعت کړې د هغې چارې اميد مي په کال نشته

د شهيد و حال ته ګوره حال ئي څه دی بې تا هسي زما حال دی بل حال نشته

روښنائي مي د چشمانو ستا ديدن دی په دا کور کښي بل څراغ و مشال نشته

په جويبار زما د سترګو سرو ته يې په دا نهر باندي بل څه نهال نشته

مخ دي بې خط و بې خاله هسې زيب کا چه ئي هيڅ حاجت په خط و په خال نشته

مخامخ که راته وګورې دلبره په کاته کښي دي ثواب دی وبال نشته

د آفتاب په مخ کښي هره ورځ زوال وي/دی!ستا د حسن په آفتاب کښي زوال نشته

په جذبه د محبت مي ځانته راښکه نور حاجت مي په رويبار او دلال نشته

ستا په يادو (کښي) رحمان هسي مشغول دی چه په زړه کښي ئي هيڅ غم د وصال نشته

١٢

مخ ته که دي نمر وايم د نمر زلفې تار تار نشته سرو که ستا قد بولم د سروې يون رفتار نشته

هرڅوك چه دې ستا و آتشين رخسار ته ګل وائي پوچ وائي د اور په مخ کښي وقر د ګلزار نشته

زلفې دي ناحقه خلق سنبل بولي دلبره/بولي په سنبل صنمه ولي چه له مښکو سره هيڅ د ګياه کار نشته

ما چه غږ په غوږو ستا د در د سپيو واوريد هسي رنګ بلبله په چمن کښي په ګفتار نشته

ستا ديدن هغه کا چه ئي سر په تنه پاس نه وي ولي چه د سر د څښتن حورو وته لار نشته

يار به د رقيب په لورې خدای نه کا رحمانه سم ولي چه د سپيو فرشتو سره څه کار نشته

١٣

که څوك لاس له سوده وکاري زيان نشته نشته
په ملنگ باندي قلنگ و تاوان

د وفا خريدار بل خوا ته دي درومي
خريداران دي بل خوا درومي
دا متاع د زمانې په دکان نشته

جدايي له اشنايي نه پيدا کېږي نشته
نا آشنا لره هيڅ غم د هجران

مګر ځان و خدای ته وسپاري/پاسلي په امان شي ګڼه بل خوا ته د هيچا امان نشته

هغه يار به زه و کومې خوا ته غواړم
چه ئي هيچرته/هيچيرې منزل و مکان نشته

دلبران که هر څو ډير شي/دي په جهان کښي
زما يار غوندې دلبر په جهان نشته

چه هم قد لري هم زلفې هم سرې شونډې
دغه هسي رنك آفتاب په آسمان/جهان نشته

عشق عاشق لره يو هسي ګلستان دی
چه باغ وته ئي لار د خزان نشته

عاشقان په عشق کښي واړه سلطانان دي
په دا ښهر کښي نيستګار و ناتوان نشته

که مجنون غوندي په عشق کښي څوك صادق شي د ليلی په دروازه کښي دربان نشته

دانايان به د رحمان په قال پوهيږي نشته
دلته کار د هر نا اهل و نادان

۱۴

په دنيا کي مخ د يار دی نورڅه نشته
هرچي دی د يار ديدار دی نور څه نشته

چي و هجر ووصال وته يې نظر کړم
يو دوزخ دی بل ګلزار دی نورڅه نشته

کارخانې چي ددې دهر لېدی کيږي
همګي دعشق سرکار دی نورڅه نشته

هر مژګان يې په ما هسي چارې کاندي نشته | وايم عين ذوالفقار دی نورڅه
---|---
بويه مرد چې يې له مخه زلفې واخلي | دغه ګنج دی دغه مار دی نورڅه نشته
د محسن د حسنات صفت به څو کړم نشته | کوتاه وايم چې بې شمار دی نور څه
و هرلور ته چې د زړه په غورو ځير شم | جوړ د محبت بازار دی نور څه نشته
چې سپين مخ او تورې زلفې يې ليدی شي | دغه ګنج دی دغه مار دی نور څه نشته
هر طبيب ته چې ځان وښيم دا وايي نشته | چې له عشقه دي آزار دی نور څه
خوار رحمان که بې تا مينه په بل چا که نشته | عين دقتل سزاوار دی نور څه

١۵

تا خو زده زما د زړه له احتياجه محتاجه | نور مې څه پو ښتې چه څه غواړې
د طالب و/د مطلوب راز به ما دروښود رواجه | که ته نه واى خبردار له دې
يار که يار ته حال په خوله نه وايئ څه شو | و حکيم ته پټ څرګند وي له مزاجه
که زما له حاله ما پو ښتې حال دادی داجه | چه بې تا مي ورځ تياره ده تر شب
آشنائي به ما په کوم قوت کوله | که خبر واى ستا د هجر له تاراجه
که له سلو به/په سلو کښې يو خواست د چا قبلېږ ی نه کا بې علاجه | خدای دي هېڅوك رنځور
په رحمان بلا پسې که زهيرېږ ي | ته مشغول اوسې له خپله تخت و تاجه

١۶

چه خبر شوم د ساقی د جام له راحه | لکه مړی ملاقي شوم له ارواحه

زه چه زلفې د يارووينم په خوب کښي          په شپه مښک راباندي ووري تر صباحه

سبا زيرى د وصال په مهجور کاندي          د هيواد خبر مونده شي له سياحه

که روا کا خون خوردن د عاشقانو          ځوك وتى شي د خوبانو له صلاحه

هر ساقي چه جام د عشق لري په لاس کښي          دا پياله ئي په مستانو ده مباحه

مخ بې ميني که ځوك ستايي ستايه نشي د ممدوح له قدره چا زده بې مداحه

د دنیا  ناوې په عقد کښي دین غواړي		ای رحمانه ځان ئي ژغوره له نکاحه
۱۷
ولي تللي يې له ما مدام په څه؟		ترهیدلی یې هر صبح و شام په څه؟

زه  هر صبح  و شام و تا وته دعا کړم		ته و ما وته کوې دشنام په څه؟

همیشه لکه وحشي په وحشت ګرزې		یو ساعت را  سره نه یې  رام په څه؟

دایماٌ/همیشه را څخه درومې مخ په وړاندي		لکه عمر  بیرته نه ږدې  ګام په څه؟

راته وایه زه به هم هغه کومه		رقیبانو/غمازانو ته بخښې انعام په څه؟

لږ پرهیزکړه له رقیبه د خدای روي دی/خدای د پاره		ګډ وې سره حلال حرام په څه؟

رحمان  ستا  په  مخ  بې  څښو هم مئین دی		بیهوده دي ورته کیښود دام په څه؟
۱۸
ولي نه ګورې و ما ته سم په څه؟		زیاتوې د غمزده ۀ غم په څه؟

ستا په غم کي چه ما ویني عالم ژاړي		ژړوې را سره نور عالم په څه؟

په  مطلب  دي د سرو  شونډو نه پوهیږم		چه می ویني د زړه څښې هر دم په څه؟

ستمګار چه ستم کا څه بهانه کا/بهانه کاندي		ته په ما باندي کوې ستم په څه؟

مه کړه خدای چه څوك بې یاره خوښ خرم وي		زه به  اوسم  بې تا خوښ خرم په څه؟

و دې خپلو برندو/مستو سترګو ته دي وایه		چه (ورژني)ور وژني مي قلم قلم په څه؟

لږ ئي ویوښته چه حال دي د زړه څه دی		د  رحمان له سترګو څاڅي  نم په څه؟

زه رحمان/رحمان خود پخپله ګرم یم چه مئین شوم		دغه/ولي نور عالم مي بولي ګرم په څه؟
۱۹
که څه وایم له هجرانه وایم څه؟		له دې درد بې درمانه وایم څه؟

توان  د دم وهلو نه لرم و یار ته چه توان نه لرم بې توانه وایم څه؟

چه ئي ووینم له ځانه خبر نه یم چه خبر نه یم له ځانه وایم څه؟

د خپل زړه له حاله هیڅ را ویل نه شي له بې نامه بې نښانه وایم څه؟

د عشق راز چه هیچا  نه دی بیان کړي ترو به زه له بې بیانه وایم څه؟

د خپل یار له غمه درست په اوښکو ډوب یم له دې هسي رنګ طوفانه وایم څه؟

زه چه پروت یم د هجران په تناره کښي د وصال له ګلستانه وایم څه؟

سر ومال د سړي لوټ کړي/کا زړه ئي یوسي له دې هسي دلستانه وایم څه؟

زاغان بولي بلبلان شړي له باغه د دې دهر له باغبانه وایم څه؟

هر چه وایم ترهمه واړو بهتر دی زه رحمان به له جانانه وایم څه؟

۲۰

څه شوکه خاموش یم ستا د عشق له آه سرده ستا زما له مینی خلقه واړه خبر ده

هیڅوك دي په خوله د عاشق لافه و نه کا کله هم پټیږي وچي شونډي ګونه زرده

اهل د دنیا واړه نامرد دي رنګ ئي ورك شه خدای دي ملاقات د هیچا مه کا له نامرده

کله بې دردانو لره زړه دچا وردرومي/دی چا ورکړی زه به صدقه کړم سل بې درد تر اهل درده

بې د ستا د عشق د شهیدانو له خاکدانه کله زرغونیږي سره لاله له هره ګرده

یو خوشحال یو کم سل ختک نور په طبیعت کښي ځار شه د  رحمان سړبني/سړه بني له یوه فرده

۲۱

که زما مینه په تا ده خطا نه ده که بې تا ده ناروا ده روا نه ده

ځوك چه بې د ستا له مخه بل ته ګوري آئينه ئي نا صفا ده صفا نه ده

هر عاشق چه پخپل يار پسي ژړا کا دا ژړا واړه خندا ده ژړا نه ده

د دنيا په تماشا چه ځوك نازيږ ي خو هم نن ئي تماشا ده سبا نه ده

که ته سل ځله له ما سره جفا کړې ستا جفا واړه وفا ده جفا نه ده

هغه تير شو چه مي مينه په غلا کړه په غلا نه ده اوس په درست جهان رسوا ده

معشقوقه که د خپل سر په بها مومي و رحمان وته ويړيا ده بها نه ده

۲۲

له اغيار سره خندا څه پکار نه ده له اغيار سره سودا څه پکار نه ده

سل يار د يوه يار د پاره کړی شي/کيږي آشنائي د هر آشنا څه پکار نه ده

بد له بدو سره بويه نيك له نيکو د جفا په ځاي وفا څه پکار نه ده

هر بلبل به دي ثنا کا که ته ګل شې په خپل ځان خپله ثنا څه پکار نه ده

عشق د بوي په څېر په پټه خوله خرګند وي په دا چارو کښي غوغا څه پکار نه ده

د عشق درد واړه عاشق لره راحت وي ده د دې هسې رنځ دوا څه پکار نه

عاشقي/عاشقان وحرص هوا/حرص وهوا دي سره لري ده د بيمار په ځان هوا څه پکار نه

عاشقي نادره چار/يو نادر کار دی په جهان کښي څه پکار نه ده ولې بې خدايه سودا

که(ئي کړم هم هيڅ يې/ګڼم هم ئي هيڅ نه ګڼم سوګند دی پکار نه ده وابستګي د دې دنيا څه

د دنيا مينه بې کاره اوريدی/ه شي چه مي وليده رښتيا څه پکار نه ده

که رحمان په جهان ډير پايم دلبره زندګي زما بې تا څه پکار نه ده

۲۴

گوره بیا به ښوك ادا كا په زړه غونډه | چه دا هسي مسته درومي مخ بر بنډه

ته چه گل د آشنائ له باغه غواړې | خبر زده كړه د هجران له خارو خنډه

ما رستم د زمانې وليده په سترګو كونډه | چه/دخپل د يار له جوره ژاړي لكه

طالبان كه مرور دي هم پخلا دي | بې مطلوبه به د چا نه رسي دا هنډه

د عاشق د لاغر سبب هم دا دی ټنډه | چه فرقه د معشوقو شوه په زړه

زه به حورې د جنت بې ياره څه كړم | خدای دي سرو د چا نه كاندي ارهنډه

سخت ساعت د بيلتانه به مي هېر نه شي ګورهنډه | كه را ډكه شي د تور لحد

زه رحمان د هغه حسن دعا ګوی/ثنا خوان يم | چه جرګه د عاشقانو وي پرې پنډه

۲۵

ما چه جور و جفا بيا مونده له ياره | د وفا طمع به څه كړم له اغياره

له دښنو/دښنه به د ښاد طمع ښوك څه كا وردوخاره | چه د دوست له لاسه غم شي

دل آزار كه دل آزار كا/شي ماښه نه شي دل آزاره | حيف خو دا دی چه دلدار شي

دا ګِله هم ډيره ډيره له هغو شي بسياره | هر چه طمع ترې د ښو كيږي

اوس دا ستا رضا جفا كړې كه وفا كړې اختياره | دواړه لاس مي اوس ختلي له

طالبان خو تر مطلوبه پوري پړه دي | خدای دي تا بې وفا نه كا وفاداره

چه/كه له ډيري حيا نه ګورې و چا ته | څه خو مخ كړه د رحمان د زړه دپاره

۲۶

وقت/وخت د نو بهار دي زه جدا له خپله یاره خئ بهاره | دریغه دریغه چه بې یاره

اور د خورو زړونو چه د غره په سر بلیږي/لګیږي له چناره | شنې لوخړې خیژي له ښتر و

دا څه عاجزي ده چه زه کښم په کاغذ باندي آزاره | راشه وویریږه د عاشقو له

دا څه اوښکي نه دي چه بهیږي له چشمانو پرهاره | ویني دي بهیږي د زړګوټي له

رنځ مي هسي سخت دی هر زمان په ما زیاتیږي رب دپاره | راشه اې طبیبه ګوندي مرم د

غرونه دي نړیږي چه په حال زما خبریږي راغلی له کهساره | سیند د اوښکو درومي چه

نور څه نه دي واړه دا ناري د بیلتانه دي هره تاره | راشه که ئي اوري د رباب له

زه یو خوار و زار یمه رحمان په عاشق کښي راته نه ګوري له عاره | خپل دي که پردي دي

۲۷

ستا په عشق کښي دروغژن یم سر تر سره چه له غمه دي ژوندی ګرځم دلبره

زه به ستا له غمه کله شو لا مړ وم | بارې دم د خدای په لاس دی ناز پروره

جدایي به مي یو دم قبوله نه کړه وای په غوره | که چا مرګ او بیلتون اېښي

شام سحر مي دغه ستا زلفې رخسار دي | نور مي مه پوښته له شامه له سحره

چه خبر دي په وصال و په هجران شوم | خبر نه یم له فردوسه له سقره

بې د ستا له مخه ورځ راباندي شپه ده | روښنايي د ورځې چیري وي بې نمره

هسي بې سر و سامان دي هیڅوك نه شي | لکه زه چه بې سامانه یم بې سره

يو هنر مي منظور ستا په نظر/هنر نه دی/شته سل هنره | كه زه وكړم ستا په عشق كښي
هيڅ اثر د رحمان اوښكي په يار نه كا | خدای دي اوښكي د چا نه كا بې اثره

۲۸

زه عار نه لرم په عشق كي له پيغوره | بې پروا يم د ست په خير له اوره
ږدی په خوله د سمندر مهر د مومو شوره | چه څوك ما منع كوي د عشق له
بې هجرانه زما بله خواري نشته | ولي نشته تر دا بله خواري نوره
لكه ته چه خدای هر گوره ښائسته كړې هرگوره | زه ئې‌هم هسي بې صبري كړم
چه په تور و سپين مي اړوي دا څوك دی | كه ته نه يې په مخ سپينه په زړه توره
د رقيب له بد خوي/بده خويه به څه وايم گوره | لا چه يار ور سره مل شي هاله
چه ئي پور د مرگ تر پوره پوري هيڅ/لا بتر دی | هی توبه د بيلتانه له بده پوره
دا مي خپل نصيب طالع دی رارسيږي | گڼه غم كله رسيږي له غم خوره
قاف تر قافه بادشاهي به يې روزې شي سيوره | چه په چا وشي دا ستا د زلفو
عاشقي سړی مجنون كاندي رحمانه | گڼه څوك په هو ښيار وزي له كوره

۲۹

نه رسيږ ي ستا و حسن وته حوره | څه به رسي و ميرمن وته مزدوره
ستا تر قده تر قامته نه رسيږي | كه نښتر كه سپاري وي كه كجوره
تر قامت پوري دي سرو ده سر كوزې نوره | تر رخسار پوري دي شمعه ده بې
هر سړی چه دي و حسن ته نظر كا | ښاپير ئي په نظر وي نا منظوره

چه تا مى د خپلو شونډو ور په خوله کړ مخموره
طايفه دي د صوفيانو کړه

اوس ته وايه چه په څه رنگ دي وستايم شعوره
زه خو ستا په مينه لاړم له

دا جذبه د عاشق نه ده نور څه ده
ګڼه کله څوك وتی شي له دستوره

اوس به زه د شب خيز څه منت وکړم
چه چهره دي کړه په خوب کښي را حضوره

چه په ننگ و په ناموس تر لوره کم وي
خدای دي مور کا په داهسي زويه بوره

که سل ځله زويه غوره وي تر لوره
صدقه شه نا قابله زوی تر لوره

ننگيالي تربرونه ښه دي او که نه وي
ننگيال ترله هم ښه ده له تربوره

خوب‌روئي بې دلبر څه په کار نه د ه
لکه ونه بې ميوې په پاڼو ګوره

که د غلوزې لباس وکا غزا وشوه
شهد نه دي چا موندلي بې زنبوره

په رحمان د ښايسته ؤ قدر ډير دی
د طبيب له قدره چا زده بې رنځوره

۳۰

ستا په عشق کښي هسي خلاص يم له شعوره
چه يوه خبره نه لرم منظوره

طبيبان وايی چه صبر دي دارو دی
خدای زمونږ فرقه پيدا کړه نا صبوره

توري هر چرې تړلې په د شمن شي
ياره ستا سترګې دوستان وژني په توره

معشوقې د زمانې شوې سره ټولې
د زړه خونه مي ئي ولوټله چوره

زه تنها په ضرور نه يم ستا له غمه
پيدا شوې عاشقي ده له ضروره

هرې شپې لره ورځ شته ده په دنيا کښي
زما عمر جدايي کړ بې له نوره

مهرویان وفا له هیچا سره نه کا                دا خبره په عالم کښي ده مشهوره

چي خبر شي/له حیرته واړه ګوتې په غاښ نیسي     په هجران کی خبر مه شې/چه خبر شي له مهجوره

د رقیب له بدو سترګو نه/دي ځان ژغوري              هر عاشق چه بهره مند وي/شي له حضوره
F
همره توان و توفیق نه ګنم په بخت کښي              چه تائب کا ما له فسق و فجوره

په نظر د مدعیانو تور کودَی وي که ئي کښینوم د کټ د پاسه حوره

د رحمان د سترګو نم به هاله وچ شي که وچ شوی د چا نم وي له ناسوره

۳۱
چه په وقت د ځنکندن وکارې ږیره              ترو نن ولي هسي ناست/رنګ یې بې تدبیره

هر سړی چه کان ـد/ګانده غم په مخ کښي ویني     له هغه غمه لا نن ګرزي دلګیره

چه سبا ارمانوې پند د پیرانو                    ولي نن د پیر طلب نه کړې بې پیره

د یار یاد به دي ځای څه رنګ په زړه نیسي    یاد د غیر چه لري نه کړې له ضمیره

چه د ټوك په طلب ګرزې خدای دي هیر دی فقیري دا هسي چیري وي فقیره

دغه غم دي خدای بدل کا په ښاد          زهیر مه شې په آشنا پسي زهیره

هرسړی د هغه مخ په رڼا ګرزي          چه ئي خونه د خاطر وي پرې منیره

همیشه پراته په اور و په اوبو وي              عاشقان د لعلو لبو له تاثیره

که هر څو ښایسته ډیر دي په جهان کښي     و هر چا ته خپل آشنا دی بې نظیره

زه رحمان د آزاد په طلب/تالاش ګرزم              بارې نه د تورو زلفو له زنځیره

۳۲

زړه مدام راته ویل چي ژاړه ژاړه | په ژړا سره دا تللی اشنا غواړه
مسلې د بې ننګ وریسې لنګ کړه | بیچاوۀ د ننګ ګښیرده وه یې نغاړه
که د یار په سر لویئ دا ستا رضا وي | په خندا خندا راځه په لکه غاړه
دا فلک چي د آسیا په دود ګردش که | په دنیا کي به پرې نږدي دانه لواړه
په دنیا کي ګوره هرچي زنده سر دی | د اجل په تیغ به پرې که د دوي غاړه
د مکې ځنځیر حاجیان په لاس کي نیسي | رحمان ونیوې د یار زلفینې واړه

۳۳

یوه هسي بې سوزي مي شوه په برخه تر ساړه | چي سردي بې لا بتره ده
مصلې د بې ننګ وریسې لنګ کړه نغاړه | د هوس مصلې قط کړه ویې
یار زما د سترګو تور پرې ګرزېدلم لاړه | په هجران کي مي د سترګو رڼا
په خوار مونده نه شي له سګانو بګاړه | په لوڅ سر سره دروزي له

۳۴

ګاه په غارمه/کله په نمرسوزي کله ریږدې په ساړه کله مرې له لوږې کله مرې په ډیر خواړه
واړه په غوغا دي چه راغلي په دنیا دي ماړه | نه ئي هغه وري په قرار دي نه
کله لاس په سر و بل ته/ځبله کیږدې تواضع کړي په چاړه | کله وبله کیږدې لاس په توره
خاوري د آدم چه کړې خمیر فرشتګانو دردونو ولاړه | درست ئي په غمونو په
څه شو که څوك نن ساعت وهل کا یا تړل کا واهه شي هم تاړه | پیښ به په هغه شي چه

ځو به وي تندرسته دا زموره ښنا سُسته                    زه يی درمانده يم په پښت په اخاړه

ښائي که ځوك پس له مرگه خاندي په لحد کښي    هر چا چه په دا ژوندون کښي خپسر/خپلسر وژاړه

وينم/ويني واړه تلوني هيڅوك نه دي پاتي شوني          يون دی په دا لاري هم د ځوان هم د زاړه

زلفي د دلدار دي چه هر ځوك ئي طلبگار دی          لوې دی که هلك دی که غټان دي که واړه

سخ د هغه چا دی چه په در کښي ئي قبول شي          زار د هغه چا چه ئي له دره وشاړه

ما عبدالرحمن غوندي جواب/سلام کړ ورته سلو          خدای خبر چه کوم يو هغي ترکي ويلاړه!

۳۵

خود به وران شې/شي د دنیا بازاره تاړه/بازار ناړه هرنفس/ساعت د بیلتانه په تاخت لتاړه

لا غُنچې په باغ کښي سترګې سپړدې نه وې ویجاړه | باد خزان ئي د زړه مېنه کړه

هسي باد پرې د فنا له لوریه والوت له ناړه/لناړه | د لاله خوله/قوله ئي پرې یسته

څه بزرګي به ئي د بازاو د همای وي خراړه | زباني ذکر که سل رنګ کا

که سل زر کاله پرې تیر شي په اوبو کښي تراړه | په نرم به نرمه نه شي وچه

تر دا هسي عمره نه عمر بهتر دی عمر واړه | هر چه حال ئي ځانکندن شي

ترو له خلاصه/تر خلاصي ځني بندي ښه يې رحمانه دي شي په غاړه | چه د یار/که د شها د زلفو ځیل

۳۶

چه غرقاب شي تور مژګان په یم د زړه د زړه | نور خراب شي خان‌ومان په غم

عبث وایې غم د زړه و بوالهوس ته | څه پوهیږي هلکان په غم د زړه

په بل مخ باندي سوا د یار له مخه زړه | ما تړلي دي چشمان محکم د

چه ئي عرش و کرسي لاندي تر قدم دي قدم د زړه | بالا تر دې هسي شان

د خلیل تر کعبې دا کعبه ده لویه زړه | که آباد کا څوك ویران حرم د

که نور خلق قدمونه ږدي په زمکه زړه | ما دي ایښی په آسمان قدم د

دا مکان چه د اسمان زمکي تر ميان دی　　　　یو خلوت دی د امکان
سُلم د زړه

زه مرهم/ملهم د زړه له چا غواړم بې خدایه/ربه　　　　چه کړی نه شي طبيبان
مرهم/ملهم د زړه

صورتي همدمان ډير دي په جهان/دنيا کښي　　　　ولي نه مومي رحمان
همدم د زړه

۳۷

ساقي پورته شه د ميو جام تيار کړه　　　　عمر هيڅ معطلي نه لري/کاندي تلوار
کړه

هر دم تيغ دا ستا زما په گلو گرزي　　　　هر نفس د خپل نفس له تيغه ډار کړه

تر خود په هورته بله بلا نشته　　　　خادمي/ښاد مي د بيخودانو په
دربار/دلبار کړه

دا پنځه ورځي ژوندون چه غنيمت دی　　　　شکرانه په دا نعمت د کردگار کړه

که غمخوار غواړې په غم و په اندوه کښي　　　　ښيښه ډکه د شرابو اختيار کړه

ځودي دوه سترگې غړيږي په جهان کښي　　　　نداره په هر ساعت د خپل نگار کړه

هغه ځوك دی چه تهمت پرې وايه نشي　　　　غوږ په هيچا باندي مه باسه
خپل کار کړه

مدعي چه په خوله/زړه ورشي هغه وايئ　　　　گوش و هوش د محبانو په گفتار
کړه

بې وفا دي د دې دهر ياران واړه　　　　چه دي پس له مرگه يار شي هغه يار
کړه

رحمان وايئ د دنيا چارې فاني دي　　　　البته په دا خبرو/ه اعتبار کړه

۳۸

چه مي مينه خدای په تا باندي پيدا کړه　　　　ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا
کړه

اوس دِ ستا رضا جفا کړې که وفا کړې　　　　ما د ستا جفا قبوله په وفا کړه

| | |
|---|---|
| ګل په لعلو و په ګوهر کله څوك پيري کړه | بې له ما چه تا خندا کړه ما ژړا |
| بې له ما چه دا ستا غم په هوس پيرم | کوم وګړي په هوس د غم سودا کړه |
| دوه ياران به دا رنګ نه وي چا ليدلي | چه يوه ورته ښکنځل کړه بل دعا کړه |
| ما و درست جهان ته شا و تا ته مخ کړ کړه | تا و درست جهان ته مخ و/او ما ته شا |
| ډير هندکي په جهان ګرځي د چا ياد دي و د رانجا کړه | عشق عالي پايه د هير او/هيرا |
| هم په دا ئي تر همه وو نام بلند شه | چه قبوله عندليب د ګل جفا کړه |
| نا آشنا د بيلتانه له غمه څه زده | خدای دغه خواري په برخه د آشنا کړه |
| عاشقان د يار تر سپيو هم ځارېږ ي | ګڼه ما د رقيبانو څه پروا کړه |

زه رحمان چه ستا د حسن ثنا خوان شوم/يم ستا له رويه درست جهان زما ثنا کړه

٣٩

| | |
|---|---|
| باړه وتړه هاله کښت و زراعت کړه | تقوی دار شه هاله طمع د جنت کړه |
| عاقلان په وړاندي ځي په ورستو ګوري | په دنيا کښې سر انجام د آخرت کړه |
| سم د لاسه کار هر ګوره ډير مشکل دی | څو لا نه يې غريب زيرمه د غربت کړه |
| چه نور خلق ملامت در باندي وايی | لا پخوا تر خلقو خپل ځان ملامت کړه |
| چه عقبی ته د دنيا په اجر مومې کړه | خو هم دا عمارت هلته عمارت |
| څو به ګورې د قيامت و ورځو شپو ته کړه | خو هم دا جهان په ځان باندي قيامت |
| چه نيکي بدي په تله کښې تلل شي | خود پخپله تله واخله عدالت کړه |
| که لښکر د حرص هوا درباندي زور شي | سر دننه په قلعه د قناعت کړه |

دا به نشي چه ستا ښتې او د حق مخ وي حقيقت کړه	که حق غواړې ته هم مخ په

هغه زړه چه عرش الله دي ګوره کوم دی خدمت کړه	ځو دي توان شي د جمله زړونو

وړاندیني هم واړه ستا په خیر سړي وو کړه	ته هم پاځه د هغو په څېر همت

د دنیا چارې همه واړه فاني دي کړه	بارې پورته شه یو بل رنګه حکمت

په طبیب د عاشقانو دارو نه شي زخمت/زحمت کړه	درومه بله خوا دارو د خپل

ځو دي حق موندلی نه دی مه جار وزه لت پت کړه	په دا مرسته/مړشه دا جهان واړه

اې رحمانه اول ته نصیحت واخله	دغه پسه بیا و بل ته نصیحت کړه

۴۰

هسي زه یم یاره ستا په غم تازه	لکه وي هره ګیاه په نم تازه

سترګې وخورم که ئي وچې کړم له نمه	که مې‌کېږي/شي په دا ژړا صنم تازه

زه به څه کړم د چا چارې بې له یاره تازه	هر سړی دی په خپل ساه په دم

د یار نوی نوی غم زېږوي وصل	رغوي سوی پرهر مرهم تازه

که دي زړه له غمه وچوي دلګیر مه شه	کاتبان کا په چول قلم تازه

ښایسته یاران ګلونه دي رحمانه	بیلتانه کړه اکثر مړاوي کم تازه

۴۱

| | |
|---|---|
| نه یم خوښ د سرو ګلونو په سایه زه | خوښ یم ستا د مخ په اور باندی جليا |
| په اور سوی ښهر وران وي څه حکمت دی | سوي ستا د مخ په اور یمه بسیا زه |
| خپلوم به دي په هر رنګ چه خپلېږ ي زه | که دي مومم په دروغ که په رښتيا |
| نن راغلي په جهان یو/یې که دیدن کړې | نه به ته په دنیا راشې نه به بیا زه |
| دا اوردې وعدې چه ته کوې صنمه زه | کاشکی بیا مومم فرصت په دا دنیا |
| چه له ډیري حیا نه ګورې و چا ته زه | غوڅ کړم غوڅ کړم دې ستا ډیري حیا |
| چه له غمه له اندوهه دي مړ نه یم | سنګ آهن یم آدم نه یم ګویا زه |
| که جوړه تلای څوك و قبرو ته دریغه | ژاړم دا چه یا به ته یې او یا زه |
| همیشه د خپلو اوښکو له سیلابه زه | سرګردان یم تر فلکه/فلك و تر آسیا |
| که څوك قیاس زما د ډیرو اوښکو وکا دریا زه | هسي ګرځم لکه خس پاس په |
| زه رحمان د یار ثنا کولی نه شم زه | کاشکې دا چي په جهان نه وای ګویا |
| | کاشکي مه وای په جهان کښي څه ګویا زه |

۴۲

| | |
|---|---|
| اي زما د زړه آرامه راشه راشه | سرو قده ګل اندامه راشه راشه |
| چه همه واړه خوبان دي مقتدیان دي | د همه واړو امامه راشه راشه |
| بې تا نشته هیڅ حرمت د عاشقانو | د مشتاقو احترامه راشه راشه |

خدای زده بیا به هسی وقت وي او که نه وي زه ویرېږم له ایامه راشه راشه

نن هنگام دی که وفا کړې که جفا کړې راشه | چارې نه شي بې هنگامه راشه

دا جهان د مسافرو یو رباط دی راشه | تله دي تله دي له دې ګرامه راشه

پرې رویه سنبل مویه ملك خویه | عنبر بویه لاله فامه راشه راشه

شپه لا پرېږده رڼا ورځ را باندې شپه شوه | د رحمان ماهِ تمامه راشه راشه

۴۳

په دوران مې هسې رنګ دلبر پیدا شه | ګویا بل د نمر د پاسه نمر پیدا شه

یا طالع د زمانې یا زما بخت دی شه | چه دا هسې رنګ شیرین بشر پیدا

چه قاصد د ورك یوسف زیری پرې وکړو | د یعقوب د سترګو بیا نظر پیدا شه

عشق دی دا که یو فساد دی نه پوهیږم | په جهان کښې چه دا شور و شر پیدا شه

دریغه نخل د عشق مه وای زرغون شوی | چه له ښاخه ئې د غم ثمر پیدا شه

ملائك د عشق له غمه خبر نه/څه خبر دي | خو هم ما لره دا سخت سفر پیدا شه

یو د ترکو بې نیازې بل عاشقی شوه | په پرهر باندې مې بل پرهر پیدا شه

بیا به روغ د عاشق له رنځه نه شي شه | په هر تن کښ چه دغه/د غم اثر پیدا

د نا اهل زوی پلار به څه ښادې کا | چه له پشته ئې لئیم پسر پیدا شه

چه هنر عیب کوې عیب هنر کا | د رحمان په دور دا هنر پیدا شه

۴۴

چه نصیب ئې سینه چاکه زړه افګار شه | جرس څکه په فریاد و په چغار

چه ندا د عاشق په عاشق وشوه شه | د غفلت له خوبه پاڅیده بیدار
عبادت د ریا کار څه پکار نه دی مردار شه | لکه غُوك هسي په بحر کښي
د جاهل زهد په زهد حساب نه دی شه | لکه مال په خمرو خرڅ د خمر خوار
مشقت د نادانانو واړه پوچ دی | لکه بې بارانه ابر تش غبار شه
علمیت د بې عملو عالمانو | لکه گنج د کتابونو په خره بار شه
چه ئي کاندي و نا اهل و نا قابل ته | نصیحت د ناصحانو کوم/څه په کار شه
د رحمان کلام په غوږ د بې هنرو شه | لکه دُر په لاس د طفل هسي خوار

۴۵

په دنیا کښي له دنیا گوښه کنار شه شه | سمندر غوندي په اور کښي گلعذار
پس له مرگه که ژوند غواړې سر گیاه کړه | په پریکړي سر بیا نوی مرغزار شه
دا ترخې اوبه به څه کوې د بحر | خود پخپله د گوهر په څیر آبدار شه
بې له خدایه نور د هیچا منت مه کړه شه | په وچ کاڼي باندي ونه د کهسار
که د وني په څیر گل و میوه غواړې شه | ځان په نمر کړه سایبان د هر خاکسار
دست په دست که د خپل کار په درستول یې | لا تر ځان ړومبی ولاړ د بل په کار شه
که دي ویره شي له خپلي در ماندگ | د درماندو دستگیري کړه خبر دار شه
که هوا دي د جنت په خاطر گرځي | خاك نشین په آستانه د هغه یار شه
که په توره تاریک کښي رڼا غواړې | نندارچي د یارد زلفو د رخسار شه

که پکار دي د سرو شونډو شيريني وي د خپل ځان په وينو سور لکه انار شه

که راضي يې چه دي باغ شي د زړه سبز په ژړا لکه باران د نوبهار شه

د رحمان په عاشق کښي سترګې وشوې چه څوك وايې عاشق ړوند دی هغه خوار شه

۴۶

بيا مى زړه د تورو زلفو مسخر شه چپ و راست مى د حبشو تور لښکر شه

هر طرف مي د دعا غشي ګذار کړ ل ولي يو هم هسي نه ؤ چه کارګر شه

و هر لور ته چه غوږ باسمه غوغا ده يا نارې د بيلتانه دي يا محشر شه

واعظان خو وعظ کاندي بارې/ي څه کا چه د عشق په ليونيو ئي ګذر شه

چه پدر غوندي ئي ما ته نصيحت کړو په ديدن د ستا هغه زما پسر شه

ستا په درکي چه پراته دي نيکبختان دي چه د ستا له دره ووت در په در/بدر شه

د عشق زخم به څوك څه ګنډ ي رحمانه چه ګنډ ون ئي په پرهر باندي پرهر شه

۴۷

هيڅ مى نه زده نه پوهيږم دا څه پېر شه چه دلدار مي د اغيار په شکل و څېر شه

زمانه مي د رقيب له لاسه وژني چه مي سپى ګاڼه هغه را باندي شېر شه

د هجران غمونو هسي په عذاب کړم هغه عيب چه مي لږ ګاڼه اوس ډېر شه

چه په تيغ مي لوبي کړې سزا مي دا ده/وه ښه چه غوځ مي زړه د ترکو په شمشېر شه

تیر ساعت به د هیچا په لاس کښینوزي شه | اوس به څه وایم و چا وته چه تېر

چه مي نوشه د هجران پیاله کړه تلخه و گنړهېر شه | د وصال دولت مي ګل/ټول زهر

چه ئې نه په وفا یاد نه په جفا وي شه | څه که رحمان د هغه یار له دله هېر

۴۸

پاڅه یو ځله سیراب د عشق په جام شه آشام شه | په ساغر د ماه و مهر می

له اوله بندگي بیا آزادي ده/وي | که مقصود د آزاد لرې غلام شه

د صیاد له وحشتونو خپلسر/خپسر خلاص کړه | لکه مرغ خانګي پخپله رام شه

ژوندی ځان په زمکه خښ کړه لکه تخم مقام شه | که لويي غواړې د خاورو په

درست جهان د کمین په خوي وخوره شه | لکه زمکه هسي لاندي تر اقدام

په نیستن کښي د هستن مرتبه ګوره شه | نندارچي په ویرانه/ن کښي د خپل بام

و دښمن وته خپل حال پخپله /پخپله عیب مه وایه مدام شه | ځان پخوا تر مرگه ووژنه

په مستانو کښي د عقل ښنتن غل دی عام شه | که په نورو خلقو خاص يې دلته

اې رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه | دغه پسه په صفت د گل اندام شه

۴۹

د دنیا د سود دپاره غمگین مه شه مه شه | غم د دین و د ایمان کړه/خوره بې دین

هر ګره، ګره کشای لري کم بخته | نا امید له خدایه غوټه جبين مه شه

ډېر خفت دی دارنده چه دانه چين شي ځو دي آب و دانه شته دانه چين مه شه

هر مرغه چه د بل غوښې خوري مردار دی ځان حلال که لکه زاڼه/ڼې شاهين مه شه

د ذرې په څير آفتاب په طلب خپل کړه لکه تيره هسي پروت په زمين مه شه

کار په تش لستوڼي نه کيږي بې لاسه لاس په رېره کړه بې لاسه آستين مه شه

عاشقي او خود بيني دي سره لري که مطلب دي عاشقي وي خودبين مه شه

په خپل کور کښي دي سفر دی که پوهيږ ې مسافر د هندوستان و د چين مه شه

خپل تابوت درته ولاړ زين کړی آس دی ته په زيرمه د بل آس و د زين مه شه

چه تقوی ديانت نه لري رحمانه د دې هسي همنشين همنشين مه شه

۵۰

په اميد د ګانده ورځ/ آينده ؤ زړه ور مه شه نسيه نقد څبله بيل کړه اوتر مه شه

په اميد اميد ئي خلق نا اميد کړه د فلك له رهزن بې خبر مه شه

د دنيا بادشاهان خواست کړی له فقيره ته بادشاه د هسي ملك شه خواستګر مه شه

ډ همای په څير طعمه کړه وچ هډوکي لکه مچ طالب د شهد و شکر مه شه

ځان صدف غوندي و خاورو ته کړه څيرمه لکه څګ هسي د بحر په سر مه شه

ډېر عزيز دي موم دلان تر سنګدلانو ته يو څاڅکی شه د اوښکو ګوهر مه شه

حيوانات هم په تسبيح د خدای مشغول دي ته انسان يې له حيوانه بتر مه شه

نفس شیطان سړی و کفر ته وباسي رحم فهم په ځان وکړه کافر مه شه

ټپ ړانده وي عاشقان د یارپه عیب/له عیبه ته ټپ ړوند د هغه یار په هنر مه شه

دغه ځاي د بیدلانو دی رحمانه د دلبرو په کوڅه دلاور مه شه

۵۱

چه له سترګو مي خوناب د زړه عيان شه — له نظره مي هر سنګ در و مرجان شه

خراب زړه چي مي ژړل د يار له غمه — بيا په اجر د هغې ژړا خندان شه

کمينہ له جمله آفتو خلاص کړم — لکه خاوري د دښمنو په چشمان شه

د غصې زهر ئي شهد شول په صبر — د خليل په څير آتش پرې ګلسان شه

عشق يو داد دي په عاشق باندي له خدايه شه — هسی نه چه و هر چا وته عيان

چه د يار زلفې رخسار مي په زړه نقش شو — خپل خلوت مي خراسان و هندوستان شه

د رنځورعلاج ترخه دارو وي شه — دغه درد دی چه هم درد وهم درمان

چه دا ستا د خولو بوي ور باندي راغي — د عطار په مخ د اوښکو رود روان شه

علامت د استغنا به ئي څرګند وي شه — هغه څوك چه تير تر ځان و تر جهان

عشق د يار په راښه وچولي ولجه دی — خو چي وچولی يې غوټه کړ تاوان شه

د ګريبان په چاکول ئي څه لارغه وي شه — چه ځيګر ئي وروسبی چاك تر ګريبان

عشق د يار په راښه وچولي ولجه دی — خو چي وچولی يې غوټه کړ تاوان شه

نادانان به د دنيا غمونه کاندي شه — مرد هغه دی چه په زيرمه د خپل ځان

نشانه د نادانہ به نوره څه وي پښيمان شه — چه سړی په خپل ګوزار/کردار باندي

آدميت څه په دولت نه دی رحمانه شه — بت که جوړ شه د سرو زرو نه انسان

۵۲

که په عقل پسې لاړم پکار نه شه		که له بخته مي ياري غوښته يار نه شه

غرونه غرونه خوب په ځاځکي اوبو تښتي/درومي	يار په سيند زما د اوښکو بيدار نه شه

معلوميږي زه/چه کم بخت د درست جهان يم	چه د درست جهان دلدار مي دلدار نه شه

ما غندي او رقيب ستائي طالع ګوره		چه سړی ورته د سپي په مقدار نه شه

که ئي سل ځله اقرار را سره وکړ!		دا زما نا قرار زړه په قرار نه شه

ډير غمونه دي چه ئي وخورمه پخپله		په دنيا کښي مي بل هيڅوك غمخوار نه شه

که مي سل نصيحتونه ورته وکړه		هغه خدای بې لاري کړی په لار نه شه

سهل کار دی که رحمان په زړه آزار شوم	چه خاطر د هغې مستې آزار نه شه

۵۳

هر ساعت چه مي/که څه ګذران دی بې مخلصه بې مخلصه		هزار بار ارمان ارمان دی

که څوك وايئ چه له ځان شيرين څه/ځانه شيرين نشته بې مخلصه		ولي ما ته ځان تاوان دی

لکه شمع په ورځ مرم و د شپې سوزم		تمام عمر مي نقصان دی بې مخلصه

په بلبل کله بهار کله خزان وي		په ما کل واړه خزان دی بې مخلصه

که شبنم هميش د نور را باندي اوري		په ما کاڼی د آسمان دی بې مخلصه

ډير غمونه د هجران را باندي تير دي مخلصه		اوس يو دم را باندي ګران دی بې

د آشنا د ميني اور و ما ته ګل دی مخلصه		ګل د اور په دود سوزان دی بې

په وصال کښي مي نه مرګ ليده نه تبه اوس مي مرګ په هر زمان دی مخلصه

زه حيران د هغو خلقو په روزګار يم چه ژوندون ورته آسان دی بې مخلصه

د رحمان د زړه دمه په هيچا نه شي مسافر غوندي حيران دی بې مخلصه

چي ښکاره شو راته راز د يار له پطه پريشان شوم په زړه حيران له دې نمطه

ځوک به څه د وفا طمع کا له ښکليو چي د طمع لفظ خالي دی له نقطه

په کشت د عاشق به پل کښينږدم که شم دا ځله خارج د غم له شطه

پرې کړه سر چي شي منصور و هر اشيا ته تيره والی د قلم راځي له قطه

بيابه څو زړونه محبوبه په منګول وړي هسي راغله لکه تکه سپينه بطه

د يار غم به دي هاله په زړه مېشته شي که دي غير غمونه شي له دله حطه

نن کاغذ راته د يار رويبار راوړی ګوره څه به شي معلوم له دغه خطه

چي مي قد د يار دراز او نه کوتاه دی رحمان واخسته په لاس ځکه اوسطه ۵۵

د هغو چي په هجران شي سينه داغه نور يې څه دي له ارامه له فراغه

دغه ځای دی د بلبلو د توتيانو د چمن له ګلو بېرته اوسه زاغه

په شمام يې سر تر پايه معطر شوم نن د باز د زلفو بوی راغی له باغه

تر قيامته به مخمور بې خوده اوسم که يو ګوټ راکا ساقي له دې اياغه

زه به ستا په در کي عمر واړه تير کړم د مجنون مي تل روزګار کېده له راغه

ستا په نور به زه رحمان صورت ستي کړم که يې ووينم يوځل جبين چراغه
۵۶

ما به ولي کړو فرياد او فغان دريغه که آشنا وای راسره جاويدان دريغه

له فراقه مخ د زړه په وينو وينځم
دريغه کاشکي نه وای مرګ بيلتون په جهان

فرزانه بلبل په وخت د بهار ژاړي چي آخر به باندي راشي خزان دريغه

زه حيران ورته ولاړ په ستر ګو وينم چي دايم راځني درومي ياران دريغه

يو ذره مي په طاعت کښي تيره نه کړه
دريغه ګران بها عمر مي لاړ رايګان

سرکښي کي تېر تر حده بېچاره يم که قوت د طاعت راکړو رحمان دريغه
۵۷

که يوځل مي هغه يار وليدی دريغه سرفراز مي سرګردان وليدی دريغه

چي تمام جهان په عقل غلبېل کړمه رېز مرېزه مي پيکان وليدی دريغه

د وجود ګلزار يې درست سره اغزی شو
دريغه خارستان مي باغستان وليدی

روغ صورت لکه بادشاه صحت يې تخت دی
دريغه ناست په تخت مي شاجهان وليدی

د تن ښهر يې خرابه خرابي شوه
دريغه بيا مي دا خراب ودان وليدی

لکه زه چي له مخلوقه ګرېزان يم
وليدی دريغه خلګ مي هسي ګرېزان/سرګردان

دا سبق راته تعليم شکستګي کړه
وليدی دريغه چي روغ کار مي شکستګان

سخت ساعت څمکه آسمان راته يکسان کړه
دريغه فرق دځمکې د آسمان وليدی

و دې خپلې حيرانۍ وته حيران يم درېغه | چې حيران صورت شادان وليدى
د قرآن او د حديث په كتو خوښ شوى | بيا په لاس حديث قرآن وليدى درېغه
چې زما رحمت پېغور ګڼي و ماته | ما هغه د ځان په شان وليدى درېغه
خپل ياران مي له زحمته په ژړا دي | ما دغه ياران خندان وليدى درېغه
د آشنا زلفې مي وليدې په لاس كي | بند په لار د هندوستان وليدى درېغه
صبح و شام مي ګدايي د يار د در كړى | په دا كار مي ځان مهمان وليدى درېغه
درخانۍ او آدم خان په ارمان لاړل | لرې ما له زړه ارمان وليدى درېغه
مخامخ مي ګفتګوې له ياره سره كړاى درېغه | د يار ما دغه احسان وليدى
چې خطا دې واړه عفو كړې رحمانه | يار مي هسې مهربان وليدى درېغه

۵۸

ته ناحق (په)له ما كينه كړې كينه ناكه | په كينه به آئينه نه كړې ته پاكه
ځوك بې وجهې چا ته توره تيره اخلي؟ هلاكه | خپل عمل دى چه دنيا ئې كړه
چه خندا ئې د بلبل په آه سرد كړه | خداى د ګل ګريوان پاره كړ سينه چاكه
ځكه سپينى شوې اول د حباب سترګې (كښې) چوى تړاكه | چه له بغضه په درياب
كه تن زمكه كړې زړه تخم باران اوښكې | لكه نخل سر به وكاږې له خاكه
بالا دست به شې هاله په نورو ونو | كه تعليم د زير دستۍ واخلې له تاكه
بيا به نه مومې د تركو واك و حكم جهان له واكه | ځو ونه ووزې د جهان له جمله/درست
د هغه جهان ژوندون به هاله مومې ژواكه | چه لاس وكاږې د دې جهان له

ته چه ژغورې سر و مال په عاشقي کښي عاشقي دا هسي چيري وي کاواکه

چه دا هسي بزرگ/لوي ميلمه و/ته کور ته بيايې اول غولی پاکيزه کړه له خاشاکه

په دويئ کښي به ور نه شې تر توحيده ثو ضمير دي خالي نه شي له اشراکه

دا همه واړه حجاب دی چه ليده شي! نور د/دي حسن بالا تر دی له ادراکه/تر افلاکه

په ظاهر لباس غلط د سړي مه شه مينځ ئي گوره له چغزي اوله مټاکه

اوليأ په جهان ځکه ځرگند نه دي چه پاك ژوی خپلسر/خپسر نغاړي له ناپاکه

هيڅ وفا ئي له هيچا سره و نه کړه ترو رحمان به څه مانه کړي له افلاکه

۵۹

هسي نه چي زما يار واړه جفا که صد چندان لکه جفا هومره وفا که

لکه زه چي په خپل يار باندي مين يم يو په سله هومره مينه يار په ما که

زړه يې وړی په احسان دی نه په جور مجنون ځکه په ليلی پسې ژړا که

درست جهان د خوبرويانو ناز بردار دی نه يوازي دغه ناز په ما او تا که

څشکل/مشکل نه گوري رحمان و هغه مخ ته چي فرښتې يې هم د حسن تماشا که

۶۰

چه خيمه ئي د سيلاب په مخ شوه لکه د حباب تماشا گوره تر دمکه

هيڅ ويسا نه ده پکار د پاڼ په سيوري که/لا ترې‌لاندې وي داوسپنو کوديکه/څو لرگو کوډلکه

دا د لاندي به همه واړه چيت پيت شي مگر سر وي چا وکښلی تر فلکه

چه په اصل خدای نسکور وي پيدا کړی ثوك به څه خوري د دې دهر له ښانکه

چه دښمن ئي وي له دوسته اړولی          د هغو احتیاط بويه له کومکه

راشه واچوه د نفس  و خولې ته خاورې          څو دي نه ده خوله د ګور په خاورو ډکه

هر چه ډکه ئي د ګور په خاورو خوله شي     په هغو باندي حرام ده/به وي حرامه نوره څکه

که نور څوكمبارکي کا  وبله نورې/څبله نوره و رحمان وته خپل يار دی تبارکه
و رحمان ته دي خپل يار وي مبارکه

۶۱

گيډه وتړه په پړي سره کلکه		د روټ طمع و مه کړه له فلکه

هر سائل چه سوال د نان کړي له آسمانه/فلکه		ګويا غواړي په کچکول کښني اوړمکه

له آسمانه چه څوك طمع د وفا کا		دغه طمع ئي طاعون ګڼه بې شکه

له بارانه سره هسي ږ/ګلا وورې		چه هر زخم ئي بد تر وي تر ټوپکه

که په چا ئي شفقت و مرحمت شي/وي		ظلم (جور)ځور به ئي بدتر/تير وي تر اوزبکه

موړ به نه شي هيڅ سړی بې قناعته ډکه		که ئي خونه وي په سيم و په زر

بيا به نه مومې کمال بې کمين		که خيمه دي وي د عرش د پاسه لکه

که جهان په نور عالم باندي فراخ دی ځيکه/له چشمکه		په تنګ چشم باندي تنګ شي تر

د دي دهر په يارانو کښني آب نشته		که ئي غواړي تر سما و تر سمکه

ترخې اوښکې د عاشق آب و نمك دي بې نمکه		خدای دي نه کا څوك بې آب و

دا درازې انديښني مه کړه رحمانه		د دنيا چاري په تله دي تر دمکه

۶۲

که په هجر کښني څوك ما پوښتي له حاله مجاله		حال خو دا دی چه ناتوان يم بې

زه د يار په ديدن څکه شتابي کړم		چه د عمر بقا نه وينم تر کاله

چه تر حسنه تر جماله ئي ځار نه شوم		شرمنده يم د خوبانو تر جماله

ته و ما ته نصيحت مه کړه ناصحه		عشق بې نياز دی له ثوابه له وباله

بې د خپل آشنا د حسن له تعریفه هیڅ مي مه پوښته له نوره قیل و قاله

ما د عشق په درس کښي نور څه لوستي نه دي بې له زلفو بې له خطه بې له خاله

په دنیا په آخرت مي دي خدای نه کا بې نصیب د مهرویانو له وصاله

که یار سر په دیدن غواړي مه جار وزه دغه حکم رحمان کړی دی دلاله

۶۳

ځو تر میانه/مینځه ورانه نه کړې د تن پوله و به نه رسې تر خدایه تر/خدای او تر رسوله

خدای و تا ته دین دنیا په غوره کیښوه/کښېښوو تا دنیا کړه په دا دواړو کښي قبوله

تر حرص پهورته بله بلا نشته دا بلا د ستا په خونه شوه نزوله

یو ساعت د خدای په ذکر مشغول نه شوې تمام عمر د خپل ځان په غم مشغوله

چه باقي زندګاني په فنا پلورې ځان په کوم دانش دانا بولې مجهوله

له خالقه روګردان شوې و مخلوق ته بیا و ځان ته عاقل وایې نا معقوله

نصیحت لکه هلك در باندي تریخ شو/دی د دنیا په شیرینۍ پسې ملوله

چه رحمان غوندي خورسند نه شې په نول کښي خلاص به نه شې په هیڅ رنګ د زړه له نوله

۶۴

خبر نه یم چه ئي راوستم له کومه بیا مي کومي خوا ته استوي چه درومه

لکه پروند چه لاس د بل په اوره کیږدي هیڅ ژوره لوړه نه وي ور معلومه

خدای را پیښه نرۍ لار کړه نالیدلې لکه ورانه ما شوړه چه وي سر ګومه

خراب زړه مي تورو زلفو ته هوس کړو/کړي باري کښیوت د مرغه په خیر په لومه

هسي کوډې عاشق را باندي وکړې مومه | چه سنگين خاطر مي نرم شه تر
چه ئي هيڅ له خدايه ترس و ويره نه شي | الغياث د دلبرانو له رسومه
کله را کاندي شراب د لعلو لبو | کله جام د زهرو را کاندي چه شومه
د مطلوب له طالبانو چه ځان شميرې مومه | اي رحمانه اول سيال شه بيا ئي

۶۵
اعتماد به په دنيا کوې تر کومه | دا رفتار به پسې شا کوې تر کومه
څو به پټ له مرگه گرزې سپينه ږيره | په روښانه ورځ به غلا کوې تر کومه
چه د دهر له يارانو وفا غواړې | صيادي به د عنقا کوې تر کومه
د پير علاج په ډانگ په لوړ نه شي | دغه کار به په عصا کوې تر کومه
په غفلت به څه اميد د مرحمت کړې | د ناسور د رنځ دوا کوې تر کومه
ته چه پند وايې ناصحه و رحمان ته | شکايت به د قضا کوې تر کومه

۶۶
شمع د دلبر سترگې عاشق پرې پروانه يې خونه ويرانه | ځان پرې/ترې خپل جليا کا شي
مطريه معنی کي د دلبر د ميني بحر | شو صدف د سترگو واړه پر په دردانه
غم مي د زړه ويني تر چشمانو رابېرون کړې | اوښکې ندي ويني ولې شوې دا بهانه
زه په دا له سترگو (ځکه) سيند د اوښکو بيايم آب خانه | يې چي ماهي د وصال وی په
شوه چشمه د سترگو ستا د غم په وينو صافه روانه | ځکه مي همېش اوښکي بهيږي
خير د ديدن وخوار عاشق ته ارزاني کړه | ته دلبر غني يې د خپل مخ په خزانه

اوښکو د فراق درباندي زور وکړ رحمانه هيڅ پروا يې نه شي بې پرواهه مستانه

عقل د رحمان دي په جفا سره مسلوب کړ مکړه مکړه مکړه هسي بده يارانه
۶۷

ډير عمر مى تير کړ بيهوده په زمانه نور دي زما سر وي او د ترکو آستانه

هيڅ مي حاصل نه کړه په شيخ و په تقوی کښي پس له دې مي وار دی هر چه شي په ميخانه

شيخ و شيخي ورد و وظيفه و ذکر فکر زه و ساقی جام و باده چنگ و ترانه

زه وزاهدانو ته حيران يم دوي و ما ته ديوانه بده خندد و ده به ديوانه

گنج د دُرو/عقل جار شه د عاشق تر خاڅکي اوښکونه خروار د عقل نه د عشق يوه دانه

تيغ د يار له لاسه په مر د عاشقانو هسي لذت کا لکه/کاندي جوړ د ميو پيمانه

خدای لره به ور شم په سودا د يار له مخه بل مقصود مي نشته په کعبه په بتختانه

زه له ډيرې ميني په تش بوئ د يار شيدا يم/شوم تل د لمدو/لوندو خټو اوبه لړ وي بهانه

ځکه زاهد زهد کا د يو جنت دپاره سر ښندلی نشي په اوربل د جانانه

ګوره د منصور هسي په دار نه شې رحمانه مه کړه دا دعشق خبرې مستې رندانه

بله نښانه/بل نام و نشان د عاشق نشته رحمانه بې نام و نشان شه که ئي غواړې نښانه

۶۸
تل ژړا فرياد کړم د دلبر په آستانه کله به و ماته مخ ښکاره که مستانه

زه لکه مجنون ولاړ په طمع د ليلا يم اوس به ليلا راشي پر سپين مخ زلفې شانه

راغلم ستا زيارت ته که مي زړه يقين نور نه شي ټيک پيزوان مي دواړه پيره ستا دي شکرانه

تيغ د معشوقو دي په ګردن دی عاشق اېښی هسي رنګه زيب که لکه مى په پيمانه

چيري د منصور په دود سنګسار نه شې رحمانه مه کوه د عشق خبرې ډېرې رندانه

۶۹

که له مخه يوه خوا کا حجابونه خدای به ورکا و خوبانو ثوابونه

کله وي چه يو په رنګ د هغه يار شي که هزار شي په آسمان کښي آفتابونه

په ګرداب د زنخدان ئي هسي غرق يم هيڅوك مه شه غرق په هسي ګردابونه

لکه زه چه ئي له غمه په عذاب يم خدای دي نه ږدي په چا هسي عذابونه

ګفتګوې مي هيڅ اثر ور باندي نه کا که له غمه ئي تصنيف کړم کتابونه

په يوه (جواب)ځواب مي رد کا هزار سواله هسي کاندي د سوالونو جوابونه

هيڅ پاياب د فن فريب ئي مونده نه شي څوك به څه غواړي د بحر پايابونه

که لږ سترګي وبله کيږدم راته وايئ په يار کښي عالم نه کاندي/کله کا خوبونه

مال و ملك ئي همه واړه اوبه يوسي د هغو سترګو چي درومي/چه ځي له سترګو سيلابونه

د کږو وروځو محراب ته ئي حيران يم څه نسبت لري بتان و محرابونه

ما هاله له پارسائ وو لاس وکښلی/نه وو لاس وللي چه په لاس کړه مطربانو ربابونه

ارغواني جامې يې واغوستې/چه آغوندي رحمانه بيا ئي جوړ کړه ستا د قتل اسبابونه

۷۰

را کوي د بيدرديه پيغورونه بلوي مي په تندي باندي اورونه

نور څه نشته واړه غوښې دي د زړونو چه و رژلی شي د ترکو په تيغونه

هر نګاه ئي په وکښو د زړونو شېر دی هميشه را باندي ازمائي زورونه

خدای دي تور د تورو سترګو چا ته نه کا عالمونه ئي ورکيږي په تورونه

يو د حسن اور يي بل کړ په جهان کښي په دا اور باندي دي وسوه ډير کورونه

زه د يار په مينه غل کړم رقيبانو ګڼه نور ئي کوم راپوري وو پورونه

د رحمان د عاشق هسي غږ وشه (ش)ښورونه چه بر پای شوه په هر ښهر کښي

۷۱

په خاطر مي غلبه شول ستا غمونه لږ د خدای دپاره کيږده قدمونه

څه خو قياس زما د ډيرو اوښکو وکړه زيمونه/رودونه چه مي چيري وو په تن کښي دا

هر چه ستا په دم ژوندي وي نه رغيږي که بې تا په ځان پوکي هزار دمونه

که هزار هزار دمونه په ځان پو کا نور به نه کا په دمونو قسمتونه

له قسمته خلاصيده د هيچا نشته حرمونه که داخل شي د مکې به

سړی/سر ئي کله په کوشش تر ځايه رسي وي کرمونه څو د خدای له لوري/لاسه نه

چه توانگر د قناعت په خزانه شي          نور به څه کاندي دينار و درمونه

قسم وخوري له خوبانو بيا ئي مات  کا          څه باور دی د رحمان په قسمونه

۷۲

ژوندي کاندي د دنيا کارو بارونه          په مړ و پريواته د خاورو انبارونه

څوك سر تور پښې پېل/ابله خاورو لره درومي          چا کاږه دي په سر ايښي دستارونه

ښه استوګنه د دوو وروڼو سره نه شي          بلکه يو ځبله اخلي/اخلي يو تر بله آزارونه

د يوې ونې له ښاخه پيدا کيږي          په چمن کښې هم ګلونه هم خارونه

هومره خلق هره ورځ له دنيا درومي          چه ئي نه په چا حساب شي نه شمارونه

يو يووار دی په هر چا باندي تيريږي/تېر شوی          هميشه په هېچا/به په چا نه وي دا وارونه

ډير له سره مي تودګي بازارګی تير دي          څوك دي نه کا په ما قنج و بازارونه
ډېر تودوکي بازارګي مي تر سر تېر دی

جدايي د آشنايانو هر دم کاندي          په رحمان باندي د تورو ګذارونه

۷۳

پټ پناه مي په خاطر لګي اورونه          چي را ياد شي د مئينو بشرونه

تل جرس درته واهه د کوچ ډلیال شئ          پرديسانو زلمو وتړئ بارونه

راشه ورشه حال يې وګوره چي څه دی          پر مئينو باندي پريواته قبرونه

تاچي دا شېرين بشر خاوري بيابان کړه          تر شېرين بشر يې وخاته خارونه

ها مئېن چي تا ليده اوس ليده نه شي          دي بند شوي د لحد په حصارونه

يوه ذره د محبت ورکړه رحمان ته          چي بې تا يې په زړه نور نه شي فکرونه
۷۴

دريغه وليدای يو ځل هغه مخونه          چه دراز لري مژګان دراز قدونه

دراز قد دراز مژگان درازې زلفې وړې شونډې وړه خوله واړه غاښونه

د آسمان شمس و قمر به ترې قربان کړم هم د زمکی په سر واړه سره گلونه

چه ئي ووينم په مخ مي اوښکې درومي د پسرلي له مخه ووري بارانونه

که يو ځله ئي مخ ووينم په سترگو ما په زړه کي قبول کړيدي نذرونه

د هجران په شپه سوړ کټ راته سور اور شي يو زمان مي باندي نه لگي اړخونه

چه په سپينو اننگو دي زلفې زانگي ښاماران دي د چنډنو په ښاخونه

که خدای غم د جدائيه ورته آسان کړ و رحمان وته آسان دي نور غمونه

۷۵
که ستا خپله سيه رويي نه وي دښمنه آيئنه زما د زړه نه ده خچنه

ته چه ما وته په نظر د عيب گورې دغه واړه عيب ستا دی اې عيبجنه

خپل صورت په آئينه کښي هر څوك گوري که ريمنه که (چ)څهره/څېره د چا صفا ده/وي

چوهاړي د حلال خور په نامه بولي چيري خپله بدي نه کړې معينه

ته چه بد له بله وايې زه ويرېږم و هر چا و ته چي کړې د چا غندنه

تر هغه به ړومبی عيب ستا څرگند شي چه هر چا وته دي کړې ده غندنه/خندنه

هر څه/رنگ تخم چه کرې هغه به يوسې/اخلې خپله خپله ميوه نيسي هره ونه

که له خپله عيبه ځان ژغورې رحمانه د هيچا له عيبه مه کوه پوښتنه

۷۶
ما وې زه به نه کړم په خوبانو باندي مينه مينه د خوبانو وچوي د صورت وينه

خدای زما په برخه عاشقي کړه له ازله          خوښ یم په دا برخه که ترخه ده که شیرینه

زهر دي که قند دي هم پخپله خوله ځرګند دي          نه مومي څوك خوند د بل د خولې له انګبینه

زمکه هغه سوزي هرچه اور ور باندي بل وي          روغه خلقه شوه د  رنځورو  تماش بینه

ښه توښه مي ښشي په تش ډاډ د کور و کلی مرد بوی چه واخلي د غم پیټی له غمګینه

نور عالم به څه کړم زه مرید د هغه کس یم هر چه و ماراکا  یو پیغام له نازنینه

څو به سوك په سترګو ځړوم له هسي غمه  څو به مي تل څاڅي د غم اوښکي/ویني د زړه له آستینه

سر د رحمان درومي د هجران په تیره توره ته ئي نګهبان شې یا اله العلمینه

اور د جدای په رحمان دی لګېدلی          وخت دی که مدد کړې یا میران محی الدینه

۷۷

یادوې په خوله مکه او مدینه          نسکور پروت ئي د عورتي په سینه

زوړند سر لکه غنچه مراقبه کړې          پټ دي نقش د زړه رخت دی/وي رنګینه

د اطلسو قبا غواړې نه ئي مومې          له ناکامه دي خرقه کړه پشمینه

عبادت دي څو تیری  تر  معصیت  کا/کړ(ي)          څه خو ونیسه و ځان ته آئینه

کینه بده ده  بې شکه جنګ حرام دي          نه له نفس وله شیطان سره کینه

د مردانو کار له نفسه سره جنګ وي          نه زنان غوندي له نقش و نګینه

تر ناپاکو نارینه ۋ، وي/ده بهتره          پاك دامنه پرهیزګاره ارتینه

د دینداري ارتینې له یوې ګَوښې          صدقه شه سل بې دینه نارینه

نیکو کار سړی بهتر دی که خورد سال وي تر سپین ږیریه بد کرداره دیرینه

بد کردار که صد ساله وي و رحمان ته ځرگندیږي لکه طفل شبینه

راشه نجومي زما د یار فال وگوره تللی یار به کله له سفره را بشینه
۷۸

هرچی خپلي میني خوارکړ خوار یې مه گڼه عشق د رحمت ابر دی غبار یې مه گڼه

کله تور سنبل کله تور مښکه کله عنبر شي زلفي که د مار په څېر دي ماریې مه گڼه

یو مخ یې د سوز دی سل مخه (یې) د ساز دي عشق په اصل نار دی نار یې مه گڼه

ډېر بیدار ویده دی لکه بت په غټو سترگو بت که درته غټ گوري بیدار یې مه گڼه

مراد خو یو اثر دی د خوبانو له رخساره هرچي اثر نه لري رخسار یې مه گڼه

خار چي په گل پوري (وي) د گلو په حساب وي څه وشو که نام د خار دی خار یې مه گڼه

پوه خلک هغه دي چي اقرار په ناپوهی کا هرچي ځان هوښیار گڼي هوښیار یې مه گڼه

بد خو هم هغه دي خپل بد ور ځرگند نه وي هرچي ځان بد کار گڼي بدکار یې مه گڼه

هرچا چي اقرار د یار له زلفو سره وکړ تل به نا قرار وي په قرار یې مه گڼه

هرچي کمال غواړي کمیني (دي) درحمان کا عین دغه چار ده بله چار یې مه گڼه
۷۹

بیا دي مخ دی جار وتلی څه بلا شوه دا بلا له کومه لوري را پیدا شوه

ورځ چي واوري دغه هسې نه وي څه وي لکه نن چي د خپل یار و ماته شا شوه

دا زما په یار کښي مهر و وفا نشته که دنیا واړه بې مهره بې وفا شوه

چه ئي هيڅ له خدايه ترس او ويره نه شي په نصيبـ مې یوه هسي دلربا شوه

چه ئي حسن وته يي ګورم حيرانيږ م را ځرګنده یوه هسي تماشا
شوه

څه د حد و د حساب خبره نه ده بې صبري مي تر حسابه زياته لا شوه

قراري مي په طلب کښي شوه حرامه/ئي حرام شه بې‌غمي مي په مذهب
کښي ناروا شوه

چه راکښلی مي پرې غشی د دعا وه هغه نښه می و نه ویشته خطا شوه

لکه پوچ بادام بې مغزه بې حاصله هسي پوچه بې حاصله مي دعا شوه

عاشقي چه مي له خلقو په غلا غلا کړه هغه غلا مي په تمام جهان رسوا
شوه

څه بهره به له نسيه معاملو مومم چه مي نقده په ورغوي کښي
نسيا شوه

درد بيرته جاروتو شه راته پورې په نصيب مي بله نه وه دا وه دا شوه

يوه (برخه)بخره هر سړي لره خدای ورکړه زما برخه آشنائي د خپل آشنا شوه

د تدبير په دام به څه شکل کښيوزي معشوقه چه مي په مثل د عنقا
شوه

ورځ چي واوري دغه هسي نه وي څه وي لکه نن ي د خپل يار وماته شا شوه

چه ئي زر کړو زيړ رخسار زما د خاورو عاشقي نه وه په باب زما کيميا شوه

څه حکمت د يار په مينه کښي خدای کښېښود چه عاشق لره هم درد شوه هم
دوا شوه

دا باران نه دی چه وورې له آسمانه د مرغانو په رحمان باندي ژړا شوه

٨٠

ای د نفس او حرص په هوا لېوه
په ظاهر صورت ملک په معنی دېوه

شدادي خصلت دي ونيوه د ظلم
خبر نشوې د مسکين د زړه له غرېوه

تا چي مخ د فرعون په دود تور کړ
په دې خوی به برابر نه شې له نيکېوه

پر وجود به دي څه رنګ حاصليري
چي لېرې د يار له دره دد و دېوه

په ظاهر صورت تندرست په روح رنځوره معتېوه
درېغه وسوی تر دغه پوست لاندي

د نېست له مکافاتو هغه خلاص شول
چي هستي يې د فنا په مخ ايرېوه

اور دي پاڅاوه له خوبه (باور وکړه)
ورحمان وته په خپله په نارېوه

۸۱

چه په نور څه پوري زړه تړې بې خدايه ځايه
څه پوهيږې چه په ځاي کړې که بې

دا خو نشته چه به تل تر تله پايې
که بيا پايې خو تر سلو کالو پايه

که دي سل کاله شي عمر خو به تير شي وايه
دغه پسه بيا به څه کړې راته

سم له لاسه چارې نه شي مرد هغه دی ورايه
چه بيدار وي و غليم وته له

ته په اصل کښي سړی يې خاروی نه يې
د چارپايو چاري مه کوه دو پايه

مرتبه به دي د مچ او د ميږي شي
زړه په غوړو غوښو مه تړه همايه

موږ به نه شې په حرص بې قناعته گدايه
اي په تخت د اورنګ زيب ناسته

وړاندي سرای لره توښه تړه رحمانه
څو سفر دي کړی نه دی له دې سرايه

۸۲

په حالت د عاشقانو نظر بويه
په زيارت د شهيدانو گذر بويه

بې مرشده ځوك خبر د مريد اخلي غوځ په غم د فرزندانو پدر بويه

بې ريباره رسيده و يار ته ګران دي په كوځه د مهرويانو رهبر بويه

بې هنره چا دولت موندلی نه دی په خدمت د صاحبانو هنر بويه

ستا له سترګو مي هر ګور ملاحظه شي بويه له دې هسې سياه دلانو حذر

ښه چه سترګې خدای ملالې كړې د تركو لړ په زړه د ظالمانو اثر بويه

ستا په داغ به هر يو زړه مشرف نه شي دغه تاج د بزرګانو په سر بويه

چه خبر د رحمان نه اخلي يار بد كا بادشاهان له ګدايانو خبر بويه

## ی

١

زړه مي وركړ و خودرای هر چه شي/شوه تكيه په خدای

په سودا د عاشقئ كښي يا به شاه شم يا ګدای

يا به كښينم و دونهئ ته يا په سيوري د همای

چه خدای كا هغه به وشي نه بل خدای لرم نه ځای

بې دلبره به ور نه كړم بل و هيچا د زړه رای

پاي بوسي به ئي پرې نه ږدم ځو مي رسي دست و پای

يا خندا ده په دنيا كښي يا ژړا ده په وای وای

تر دا دوو چارو پههور ته نور ځه نشته به دا سرای

عاشق بويه چه صادق وي نه خود كام و نه خود رای

خدای دي نه كا ځوك په عشق كښي جو فروش ګندم نمای

زه رحمان په كار پوهيږم كه مي مل شي كار فرمای

۲

کاشکې زه خاورې ایرې د ستا د در وای چي قدم دي همیشه زما په سر وای

خو یو ځله زما و ستا و بله مخ شوای نور مي موخه ستا د غشیو په ټټر وای

تمام تن مي د رانجو په څیر اوړه شوی/وای خو په ما د تورو سترګو یو نظر وای

په زیړ رنګ په سپینو اوښکو به ما بیا موند وای که د ترکو ملاقات په سیم او زر

ملامت به په ما څه لره وایه شه وای که د ستا له دلبر نه څوک خبر

مرتبه که ستا د عشق شي ور څرګنده بشر وای ملایک به واړه وائې چي

تماشه به زما هله در ښکاره شوه زه دلبر وای که ته ما غوندې بیدل وای (او)

په خونبار به زما سترګو غوندې نه ؤ وای که په مخ مې د تیرو تورو پرهر

ستا په درد کښي طبیب وائې و رحمان ته بتر وای لا به ښه وی که دي حال تر دا

یا شبنم د صبحدم یا عندلیب شوی وای چي دا ستا په ګلشنو زما ګذر

۳

یو یو داغ په ټټر ایښی د هر چا دی که پادشاه د ولایت دی که ګدا

سیرابي په سر چشمه د دنیا نشته ګوښې په غوغا دی تشنه لب ئي ګوښې

لړ راحت په ډېر زحمت سره/باندي مونده شي د دې دهر خس حرام شه که وېړيا دی

د دنيا ښادي بې غمه مونده نه شي لړ خيرات د شوم له کوره په بلا دی

فراغت پرې باندي ولي حرام نه وي چه داخل په سراچه د دې دنيا دی

د مجنون د حال پو ښتنه به څوك څه کا جهان واړه کوراکور مجنون ليلا دی

عشق يو هسي رنگ افسون په عالم پو کړ چه عاشق په تورو سترګو نابينا دی

دهر چا ئي(برخې) بخري ورکړې/برخه ورکړه ګوښې ګوښې خپل قسمت د هر سړي جدا جدا دی

ورکړه راکړه/راپيروده همګي/ټول د بل په لاس دي دلته/هلته دخل نه د ستا دی نه زما دی

په هر څه چه د صاحب د زړه رضا شي په بنده که ناروا دی هم روا دی

خواه نا خواه که ئي رضا وي او که نه وي د قسمت رسد رضا و نا رضا دی

څان جهان سپارلی بويه و هغه ته چه ئي حکم جاري شوی په هر چا دی

د هر چا په لاس چه حکم حاکم ور کا/کړي جهان واړه د هغو/هغه په مدعا دی

چه مولی/لا ور سره مل نه وي رحمانه که لښکرې ورسره وي يك تنها دی

۴

هسي رنګ نعمت را کړی خدای و ما دی چه هيڅ څيز بها ئي نشته بې بها دی

يو خو دا چه ئي په شکل د آدم کړم دويم دا چه محمد(ص) مي رهنما دی

لاس و پښې و غوږ و سترګې خوله او ژبه يو صورت مي په څو اسمه مسما دی

آسمان زمکه نمر سپوږمۍ و روښان ستوري درست جهان  مي و  نظر ته تماشا دی

شپه و روځ د ماه و مهر له پرتوه مخ د زمکی راته درست  نقره طلا دی

په شپه مشک/مښک په ورځ کافور را باندي ووري درست صورت مې په کښي غرق سر تر پا دی

چه/په هر دم زندګاني بخښي و ماته هر نسیم د یار له لوري مسیحا دی

د چمن و سرو ګلونو ته چه ګورم هرهر ګل راته له ورایه په خندا دی

د ګلګونو میو ناوې راته ناسته زنګاري قمیص آغوستی د مینا دی

خپلې ویني په ورغوي کښې نیولې هر ساغر د می فروشو جان فدا دی

د ښه/شنه رود په غاړه ناست سرود په لاس کښي هر مطرب لکه بلبل هسي ګویا دی

سپین مخونه سرې لښتۍ دي د دلبرو هر دیدن یې د آفتاب په څېر رڼا دی

چه دا هسي معرفت ئي پرې پیرزو کړ په رحمان باندي منت د پاک مولا دی

۵

دا چه مست په میو راغی یار د چا دی بیا به تاخت کا په کوم غولي وار د چا دی

چه زړه سوی ئي د حرم په صید هم نه شي دا بې درده  و بې صرفې ګذار د چا دی

ما خو نه دی څوك بې وجهي آزار کړی دا چه ما آزاروي آزار د چا دی

چه ئي درست جهان د مخ په رڼا زیست کا دا آفتاب غوندي روښان رخسار د چا دی

چه بلبل ئي رسیدی تر ګلو نه شي دا دننه په حرم ګلزار د چا دی

چه هیڅ ترس په زړه کښي نه لري رحمانه دا نا ترس و بې پروا  نګار  د چا دی

۶

غواصان که ګوهر غواړي ګوهر دا دی بيدلان که دلبر غواړي دلبر دا دی

زما يار غوندي به بل يو دلبر نه وي د جمله ؤ دلبرانو سرور دا دی

خوند د لبو او د چاه زنخدان ئي راشه ګوره زمزم دا دی کوثر دا دی

چه يي/دي وصل او هجران وته نظر کړم زه ګمان کړم جنت دادی سقر دا دی

ته خطبه په منبر څه لولې خطيبه قدم کيږده په ځان باندي منبر دا دی

د مکې/کعبې سفر آسان دی مرد هاله يې/هغه دی که/چه له ځانه سفروکړې/کاندي سفر دا دی

هر منعم چه دلجويي د قلندر کا هغه نه دی قلندر قلندر دا دی

چه توانګر د قناعت په خزانه شي بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دی

دا هنر نه دی چه خاوري ځوك سره زر کا چه زر خاوري کا رحمانه هنر دا دی

۷

هغه زړه چه ستا د عشق په اور کباب دی | که مرهم ور باندي کېږدي ډير ثواب دی

حجابونه له اغيارو مناسب دي | د يارانو په يار کښي څه حجاب دی

بې تا چه ښايسته يې بې حسابه دی | نور ښايست د جهان واړه په حساب دی

ښاپېر که هرڅو ډېرې ښايسته دي | په هغو کښي هم ستا حسن انتخاب دی

لکه گل چه تر آفتاب پورې خجل دی/وي | دغه هسي ستا تر مخ پوري آفتاب دی

دا د ميو څه مستي او سرخي نه ده | تيغ د سترگو دي په وينو کښي غرقاب دی

زه رحمان به ج/ځواب څه کوم و يار ته | و ژونديو ته د مړيو څه ځواب دی

٨

د ساقي په لاس کښي جام د مي ناب دی | مطرب ايښی په زانو باندي رباب دی

ته چه ما وته توبه وائې ناصحه | په دا وقت کښي چا څخه د توبې تاب دی

زه چه ځان منعه کوم د عشق له کاره | په دا هسي کار کښي کوم سود و ثواب دی

دا آسمان چه لوی په عقل کښي باله شي | په محيط د عاشقي کښي يو حباب دی

محتسب په رقص گډ شو باک يې نشته | صوفي پروت په ميخانه کي مست خراب دی

هر چه ژغوري سر و مال په عاشق کښي | هغه کړی کور په مخ کښي د سيلاب دی

په رقيب باندي غفلت راغی ويده شو | يار پلو له مخه واخيست بې حجاب دی

ته چه خوب غواړې په عشق کښي راته وايه کوم چا کړی د زمري په خوله کښي خواب دی

بې عمل که کتاب کيږدي په سر څه شو کتاب دی
ګويا ايښی ئي تر پښو لاندي

چه د شر د عملونو نه خير غواړي دی
تشنه لب غوندي سر شوی په سراب

د دښمن له مکارئيه وويريږه دی
په نرم ئي غلط مه شه سنګ در آب

عبادت په شتاب هسي کړه رحمانه
لکه عمر چه دي تلونی په شتاب دی

۹

چي تر سنګ و تر آهنه ئي زړه سخت دی
زړه هغه لره ورکړی ما کم بخت دی

خدايه کله به هغه غل راته ايل کړې
چه لوټلی ئي زما د خاطر رخت دی

همره غم به نور په هيچا باندي نه وي لخت دی
لکه غم چه د خپل يار په ما يک

مګر بيل په تيره تيغ شي يار له ياره دی
ګڼه ښاخ له خپله ښاخ سره درخت

د پالنګ او د پيړ حاجت ئي نشته
د يارانو نشستن د زړه په تخت دی

چه له ډيره درده وخت پيژاندی نشي دی
په رحمان باندي بې ياره هسي وخت

۱۰

ستا له لاسه په ما جور دی که داد دی مراد دی
زما مراد خو واړه ستا د خاطر/زړه

ستا په مينه کي زما له مخه تښتي دی
که آفت دی که آسيب دی که فساد

هر اهداد چه را کاوه شي ستا په مينه
په ليمه زما قبول هغه اهداد دی

که تمام جهان مي پريوزي په ليمه کښي ياد دی
بې تا نه را څرګنديږي نه مي

ما چه غوړ دا ستا د عشق په ترانه کړ نصيحت مي نور د زړه په غوږو ياد دی

اوس زما له ننگ و نامه سره څه دي چه دي نام/نوم د عاشق را باندي زياد دی

هر گلشن چه له گلرخه بې بهره وي د عاشق په نظر غولی د صياد دی

د رحمان و توان ته گوره هومره ناز کړه څه د اوسپنو روغ نه دی آدم زاد دی ١١

که ئي مهر و محبت که ئي عناد دی ما د يار په يار کړی اعتماد دی

زه و يار که په تن دوه په معنی يَو يُو هزار خوني واړه ښهر يو بغداد دی

هيڅ بيلتون زما د يار وبله نشته دی کار همه واړه موقوف په خپل ميعاد

هيڅ موقوف د معشوقې په حسن نه دی د عاشق خاطر په خپلې ميني/خپله مينه ښاد دی

زه خپل آه آتشين له خدايه غواړم د آشنا خاطر که موم دی که فولاد دی

چه پريشان د يار د زلفو په څير نه وي جمعيت د هغو زړونو لوی فساد دی

چه د آه و د فرياد طاقت ئي نه وي هر سکوت د بې طاقتو آه فرياد دی

سل په دا رنگه نومونه د عشق نور دي لکه نوم چه د مجنون او د فرهاد دی

چه ئي زړه شي هلته ښکښني هلته پاځي عشق د عقل و د هنر کره داماد دی

بادشاهان په عاشق کښي ملنگان شي ما و تا غوندي وگړي د چا ياد دی

چه پريشان د يار د زلفو په څېر نه وي جميعت د هغو زړونو لوی فساد دی

که رښتیا له خرابې/خرابیه سره ګنج وي خرابات دبې بنیادو بېخ بنیاد دی

که کمال د کمینې په اندازه دي/وي فوقیت د شاګردانو په استاد دی

چه په یار پسي تر ځان تر جهان تیر شي په رحمان زموره/ځمونږه هسي اعتقاد دی

چه دا نور شاعران کاندي هغه نه کا رحمان کړی نوی نوی اجتهاد دی

۱۲

په خاطر باندي مي ستا د غم غبار دی همیشه مي په زړه پروت انبار انبار دی

رهبري که ګمراهانو ته کړي خضر دی عاشقانو لره خضر ستا ریبار

که رهبر وي ګمراهانو لره خضر

ګوندي چیري ځوك د خدای په در قبول وي ستا له لاسه مي فریاد په هر دیار دی

د شهید و پرهارونو ته نظر کړه هسي رنګ له دواړو سترګو مي خونبار دی

هسي رنګه مي له دوو سترګو خونبار دی

چه د غم په بار ئي زړه دی زما کښلی هم هغه مي په زړه کښلی په بار بار دی

چه هر دم مي د غمزو په تورو وژني لا مي زړه د هغو سترګو منت بار دی

دا آسمان دي د هغه په مدعا وي چه په ما باندي ئي کړی ستا اخبار دی

که یار سل ځله جفا ور سره کاندي د رحمان دا هسي کله اعتبار دی

۱۳

کمیني یو نادر کار دی چه کمال ځني اظهار دی

چه اختيار ئي كميني كړه	په دانه كښي پټ خروار دى

چرگ په دوه پيسې حلال شي	باز په سل روپۍ مردار دى

چه آسمان شه سرگردان شه	چه زمين شه بر قرار دى

ښتر گوره سر كشي/كښي كا	انگور گوره نگونسار دى

ذره خواره شوه آفتاب شوه	ابر ځورب دى غبار دى

كوه بلند شه سيه سنگ شه	لعل ووړ شه بزرگوار دى

لوى آسمان توره تبۍ شه	هلك نمر څړه/سره انوار دى

ووړ سړى گوره رحمانه	چه لوى فيل ئي بار بردار دى

۱۴

زلفې دي له ډېرې درازيه پاى تر سر دي	يا دبنفشې لښتې خورې په صنوبر دي

لب دي آب حيات دي يا شكرې يانبات دي	يا خو زه غلط شوم تر همه واړو بهتر دي

قد ته دي څوک نه شي رسېدى له بلندۍ	ولې چې معراج وته خاته د پيغمبر دي

ماچې ستا شايست و لمر سپوږمۍ سره په تول كړه	تللي په ميزان كې تر آسمانه سپوږمۍ لمر دي

څاڅكي له آسمانه په هرچا ووري يكسانه	پرخه په واښه شي په صدفو كې گوهر دي

بخت دى چې يې څوک متمكن كړه په تخت باندي	څوک دغم په خار سره پاره پاره جگر دي

باد چې دي په زلفو باندې قصد د پرېشانۍ كړ	ځكه يې گردونه د جهان واړه په سر دي

هله به سړى شې چې دي نوم عبدالرحمان شي	اوس سړى په څه يې كه دي لوستى زيروزور دى

سپيني اوښکې، زېړ رخسار د مېني له دولته زر دي — ای رحمانه دا د عاشقانو سيم و

دا خو زه له کمبختۍ له تا زار کړم خبر دي — ستا له نيکه خوي کاڼي بوټي هم

۱۶

دنيا دار که مستغني په سيم و زر دي دی — هنرمندو څخه گنج د خپل هنر

بيهوده به زورآور و ځان ته وايئ — د دنيا سړی که هر څو زوراور دی

هسي مه وايه چه زه يم په جهان کښي — پيدا کړی خدای د سر د پاسه سر دی

ځيني ځيني ئي وليان پيغمبران کړ ل — نه چه هر سړی ولي او پيغمبر دی

جو دانه قدري يو لعل پکښي پيدا شي — نور جهان واړه د تورو کاڼو غر دی

يو بادشاه دی/وي چه لښکر ور پسې دورمي — نه په هر يوه سړي پسې لښکر دی

پيدا کړي خدای سړي په تفاوت دي — هسي نه چه جهان واړه برابر دی

که د عمر و رفتن ته څوك نظر کا دی — دا به وايئ چه آفتاب د نمازديگر

چه ئي سر په زمکه ايښی وي و يارته — په آسمان باندي ختلی لکه نمر دی

ته تعجب زما د ډيرو اوښکو مه کړه دی — ما موندلی په دا بحر کښي گوهر

د ريا خرقه ئي خدای مه کړه په غاړه — رحمان کوږ دستار تړلی قلندر دی

درد وغم د عاشقۍ جوړه سره که — خدای ورکړی و دنيا ته يې سرور دی

۱۷

دواړه سترگې مي کرېږ د ستا په لور دي دي — مدام ډوبې د فراق په آب شور

زه يو سپی يم چارچشمه د ستا له سپيو څلور دي — چي مي ستا و درته دوه سترگې

## چې مې دوه سترګې د ستا په لور ځلور دي

کنډولي مې ددوو سترګو ستا په طمع          وهر در وته نېولي کور په کور دي

چي مي خال/خيال د ترکو وليد په خپل زړه کي     دواړه کسي مي و زړه وته نسکور دي

اعتبار د زمانې په اشنا مه کړه          همګي واړه د خپلو رختو چور دي

ما قبول د رقيب ناز کړ ستا دپاره          سود وزيان په داجهان کي خور او ورور دي

په رحمان باندي ګمان داهسي مه کړه          چي بې تا په نورځه غولېږي هغه نور دي

۱۸

ستا له غمه مي په سر کښي هسي شور دی ګويا ميشت مي په سر ښهر د لاهور دی

په افسون او په جادو د تورو سترګو          خراب زړه مي له جمله عالمه تور دی

که مي زړه له غمه چوي/وچوي راته وايئ          غم د هجر دغه مه ګڼه لا نور دی

د هجران په بيمار کښي را معلوم شه          چه اخيستی مي آزار د پلار و مور دی

دا دنيا په مثال کور شوه د غمونو          چه په هسي کور نازيږ ی هغه کور دی

دا جهان نه د چا خپل دی نه به خپل شي          چا په خپله رضا پريښود چا په زور دی

چه د مرګ په پوروړيو کښي خوك/يو ومري          دی د واړو پوروړيو زوی او ورور دی

که رحمان په عاشق ملامت/بې عزت کيږم          ما په سترګو قبول کړی دا پيغور دی

۱۹

که دلدار په دلدار زما قدم ږدي          ګويا هر قدم په لاري د حرم ږدي

ځاي لري که بې منته بوسه راکړي ږدي          کوم کريم په چا منت د خپل کرم

معشوقه مشفقه بویه مهربانه ږدي | نه قارون چه په ځان اسم د حاتم

هسي پټ لرم دا زيړ رخسار له خلقو ږدي | لکه زر چه څوك له خلقو پټ پنهم

خدای و ما وته ګلونه د جنت کړل ږدي | که داغونه مي په زړه باندي د غم

هيڅ مانه دي څوك له مستو سترګو نه کا لاره سم ږدي | کوم يو مست دي چه قدم په

راحت نه دی بې زحمته چا موندلی مرهم ږدي | کوم طبيب دی چه په روغ صورت

زه هرګور تر خپل صنم پوري شرميږم ږدي | برهمن چه سر په پښو د خپل صنم

و آسمان ته لاس د عقل نه رسيږ ي قدم ږدي | دا خو عشق دی چه په عرش کرس

زه رحمان ئې تاج ګڼم د يار له لاسه | که مي پنډ په سرد جور و د ستم ږدي

زه رحمان يې شدني په ځان ګڼمه ۲۰ | که يار سل ځله ناشدي چارې کاندي

د دنيا کارونه واړه غوُلول دي دي | دا ګمان په هيچا مه کړه چه مي خپل

هيڅ مزه په دا جهان کښي پاتي نه شوه | دا يخ څورى/ي په اوبو پوري کول دي

پوزه غوړ د غوښو شته په هر چا پوري | که د شرم پوزه غوړغواړې باطل دي

که دي دوه کاسې دانې وي په کندو کښي بل دي | پس له شامه هسي وايه چه د

که ته دوه يا درې عيبونه د بل/چا شمار کړې بل به تا ته هسي وايئ چه ستا شل/سل دي

نصيحت د ناصحانو اثر نه کا د سړي اوسپنې خوشي ټکول دي

دا نا اهل همدمان دي نه پوهيږم که مُچ درحمان پنډې په ګوګل دي

۲۱

سپين رخسار و مشکين خال وبله ضم دي يا محمود و اياز ناست سره همدم دي

که دي مخ په زلفو پټ شه باک ئي نشته د حيات اوبه هم پټې په تور تم دي

ستا له زلفو له رخساره له سرو شنډو دي پيدا شوي شام شفق و صحبدم

په دهن کښي دي غاښونه تجلی کا يا غوټئ په غنچه کي د شبنم دي

نه چه اوس زما زړه غوځ ستا په غمزه دی چاړه غوښې له قديم سره په غم دي

بې ژړا و چا ته نه ګوري سيه چشم د نرګسو غوړيده د جوي په نم دي

راحت نه دی چا موندلی بې زحمته ستا جفا و وفا واړه منقسم دي

ستا د حسن د تعريف له برکته د رحمان د شعر کوکي په عالم دي

۲۳

چه د څنګه مي دلبر په لاس کښي جام دی نن اورنګ د زمانې زما غلام دی

مدام کله وي دنيا د دنيا دارو دی بې له عشقه چه دولت ئي مستدام

د (هرون)هارون څرخ پای نيلي دی د سپهر دی څو به دو کا چه ئي دو په سر د بام

د دنيا چارې په مثل دي د سيورې د آفتاب په مخ د سيورې څه مقام دی

که ئي صبح ښايسته ده خنده رويه دی بيا ئي هسي په هر صبح پسي شام

نه په مهرکښي آرام شته نه په ماه کي په دنيا راغلی هر يو بې آرام دی

ته چي خپل فراغت غواړې په جهان کي فراغت خاطر را وښيه کدام دی

بې غمي په دنيا چيرې ده رحمانه يو بې غم دي څوك را وښيي كدام دی

۱۷
ما دا ستا لمن ته اچولی دا خپل ځان دی ستا دی ځما نه دی که دانا دی که نادان دی

خپله سرکښي/کشي لويي مي واړه/همه واړه فراموش شوه/دي هسي مي زړه ستا دې لوي قامت وته حيران دی

بې له تا که سير د ګلستان کړم د ګلونو/که د ګلو نه پوهيږم هيڅ چه ګلستان دی که زندان دی

چا پيژاندم زه چه عاشق نه وم په جهان کښي اوس مي ستا له رويه نوم رسوا په درست جهان دی

ډير همزولي تير شوه د مجنون بې نام و نقشه عشق دی چه عاشق لره هم نام دی هم نشان دی

لوی تر کوم چينجي دی پروا نه چه افسانه شه واړه په سبب د عاشقيه نمايان دی

واړه د خپل ځان په نظر ګوره که دانا يې اي عبدالرحمانه درست جهان عبدالرحمان دی

۲۴
په نامه د هغه خدای مي دا بيان دی چه يو نوم ئي په نومونو کښي سجان دی

هم بادشاه دی د جمله ؤ بادشاهانو هم د هر يوه سلطان په سر سلطان دی

هغه کار چه و هر چا وته مشکل(دی)وي هغه کار واړه و ده وته آسان دی

څوك آفتاب شي په آسمان را خيژولی ده آفتاب را خيژولی په آسمان دی

څوك د نمر په مخ حجاب شي غوړولی ده پټ کړی نمر په ابر کښي پنهان دی

ځوك په شپه كي شي مهتاب پيدا كولی تابان دی　　ده په شپه كښي پيدا كړی ماه

ځوك يو ځاځكی پرېِ ايستی شي له اسمانه　　نزول كړی ده په مونږ باندي باران دی

ځوك شي روح ننويستی په يوه ماشي　　ژوندی كړی ده په روح تمام جهان دی

ځوك و سنگ شي رنگ د گلو ور كولی　　ده و سنگ وركړی رنگ د ارغوان دی

ځوك له خاورو شي يو گل پيدا كولی　　ده له خاورو پيدا كړی گلستان دی

ځوک له اوره شي اوبه پيدا كولی　　ده له اوره پيدا كړی زمستان دی

ځوك له سنگه شي گوهر پيدا كولی　　ده له سنگه پيدا كړی در مرجان دی

ځوك شي رزق وهر مخلوق ته رسولی رسان دی　　دی د هر يوه مخلوق روزي

ځوك بنده لره ايمان شي ور كولی　　ده وركړی هر مؤمن لره ايمان دی

ځوك له زمكي و آسمان ته شي ختلی　　ده عيسی لره وركړی دا مكان دی

ځوك له خدای سره خبرې شي كولی　　ده موسی مشرف كړی په دا شان دی

ځوك ايښودي په توسن د آسمان زين شي سليمان دی　　ايښی ده په هوا تخت د

ځوك په سپينه ږيره پايي تر قيامته دی　　ده په خضر باندي كړی دا احسان

چه په ده شي هغه كار په هيچا نه شي　　هر توانا د ده تر توان پوري ناتوان دی

په اوبو كښي ئي د كاڼو/كاڼي كوټ/گوټ پيدا كړ لره مكان دی　　ده وركړی په كښي اور

په سجده/سجود ئي (ځمكې)زمكي سر دی لگولی سره آسمان دی　　هم ئي زوړند په ركوع

هره ونه په قيام ورته ولاړه　　هر گياه ئي په تسبيح سره زبان دی

همه واړه په تسبيح دده مشغول دي دی
که مَلَك دی که پيری دی که انسان

هر ماهی ئي په درياب کښي حمد وايئ خوان دی
هر مرغه ئي په چمن کښي ثنا

حق په حق ئي هيچا نه ده ثنا کړې
نه له هيچا واقع شوی دا بيان دی

مخلوقاتو هسي نه دی پيژاندلي دی
لکه ده سره/ښخه چه قدر دځپل ځان

حد پايان ئي هيڅ سړي موندلی نه دی
معرفت ئي هسي بحر بې پايان دی

نه هيڅوک دده په خبر ده په شان دي
او نه دی د چا په خبر د چا په شان دی

نه ئي زيان نه ئي زوال نه ئي نقصان شته
دي بې زيانه بې زواله بې نقصان دی

نه ئي مثل نه مثال نه ئي مکان شته
دي بې مثله بې مثاله بې مکان دی

پاك ئي وګڼه بې شک او/شکه بې ګمانه دی
له هغه چه د چا شك د چا ګمان

نه ئي څوك په سترګو ويني نه ليده شي
او بې چونه بې چګونه نمايان

که څوك وايئ ليده نه شي ليده نه شي دی
او که وايئ وهر چا وته عيان

منزه دی له جمله ؤ جهتونو
او بيا هر جهت په ده باندي ودان دی

له زرګونو صفتونو راشه ګوره
چه ئي کړی نيم صفت عبدالرحمن دی

۲۵

زړه مي ستا په فکر ذکر ګلستان دی
تن مي ستا له غمه پاښه د خزان دی

ستا د هجر په غم هسي بهره مند يم کان/رود روان دی
چه په سترګو کښي مي جوړ د درو

ستا كتو مي عجب زخم په زړه وكړ دی		چه همويني ترې بهيږ ي هم خندان

هسي رنگ مي د خپل زړه له وينو واخيست دی		چه ځان درست راته په شكل د جانان

كه د ستا د زلفو مار كاندي خونونه		ما موندلی ځني عمر جاودان دی

ځنكندن كه هر څو تلخ و تريخ وايه شي		ستا د لبو په مدد آبحيوان دی

آشنائي تر جدائی كم زورې نده كنعان دی		معطر په بوي د مصر درست

لكه نمر په څلورم آسمان ليده شي		محبت به سل حجابه كښي عيان دی

نور د شمع په فانوس كله پټيږي		عشق د عقل په پرده كښي نمايان دی

كه د ستا په مخ كښي بوئ د حجاب نشته دی		زه له ډيرې ځلې وايم چه نهان

طاؤس رنگ زلفې دي چا هسي گره/دي سهي كړې چه هر موي ئي په څو رنگه په څو شان دی

بې پردې به حسن نه وي چا ليدلی دی		كه څوك وايئ چه ليده شي تش گمان

ښادي غم غوندي آسانه مونده نه شي بدخشان دی		سور په خپلو وينو لعل د

كه وصال په هر زمان وای هسي دريغه زمان دی		لكه غم چه د هجران په هر

بې د ستا له ملاقاته چه مشكل شه		نور مشكل واړه په ما باندي آسان دی

هم په دا راته آسان شو نور غمونه گران دی		چه ستا غم (له)د حد په هورته راته

يو نفس به دي له دره بيرته نه شم		څو مي يو نفس باقي په دا جهان دی

قافله د صبر هيڅ ويسا پرې نه کا دی | ستا له غمه مي منزل د زړه ويران
لکه سروسامان ستا د زلفو نشته سامان دی | هسي زړه زما بې سر و بې
لکه تا چه تور گيسو په مخ پريشان کړ دی | زما هسي خراب زړه پسې پريشان
خوار خاطر به د رحمان سلامت څو وي دی | چه گذر ئي ستا په چاه زنخندان

۲۶

ستا دعشق حرفونه تور نه دي گلگون دي | هم په دا چه نوشته په جگر خون دي
تش به نه شي هغه خم د عشق له ميو مجنون دي | چه ئي خاورې د فرهاد و د
د دنيا چاري همه واړه فاني دي | دا د ستا جور و جفا ولي افزون دي
مقتولان ستا د غمزو دي لاله نه دي دي | چه په سره کفن له زمکې را بيرون
چه ئي هيڅ بها زلميو څخه نشته | جونه نه دي سکه گنج د قارون دي
بادشاهان په يوه دم کښي گدايان کا | ما ليدلي فسادونه د گردون دي
د رحمان د زړه خوناب مگر قبول شه | چه مخونه د دلبرو پرې گلگون دي

۲۸

غم دي هسي غلبه شه په ما باندي | چه مي ځاي نه شي دننه نه دباندي
له زگيروو/ويه نه مي نور خلق په عذاب شه | تل د وچو له کبله سوزي تاندي
زه دستا په غم کي شمعه غوندي ژاړم خاندې | ته زما په ژړا/غم کښي صبح غوندي
زړه مي ستا په لوري هسي آويزان دی آويزاندي | لکه زلفي دي په مخ دي

ما دي ستا د اندېښنو په اور کښې سوېږي    د دنيا اندېښنې واړه لکه سپاندي

دا دستور دي چه لوي غم په سړي ورشي    نور غمونه ئې همه شي تر پښو لاندي

هر چه ما په نصيحت له تا جار باسي    بيا د ستا په لوري درومي تر/له ما وړاندي

سره لنبه ګوره چه څه کا په وچ ډُکي!    مخ د يار په رحمان هسي چاري کاندي

۲۸

په دنيا کښې که څه کار دی خو د دين دی    د دې کار په کننده ۆ آفرين دی

چه تقوی او ديانت ئې شي په برخه    د هغو د سعادت ستوری قرين دی

قناعت مي هسي خوند په خوله کښې کېښود    چه وچ ټوك مي په دهن کښې انګبين دی

بې هاتيانو بې اوښانو بادشاهي کا    د زاړه پوزي ټوکرکی ئې قالين دی

چه په خواست د حاجت پورته کا لاسونه    د آسمان د ملائکو پرې آمين دی

چه قبوله کهتري کا په دنيا کښې    د هغو په بهتر باندي يقين دی

تَل دَ لوَړې اوبه درومي و ژور ته    حق تعالی کمال ورکړی و کمين دی

خاکساري د خاکسارانو مرتبه ده    که زړوکی ئې خيرن وي زړه ئې سپين دی

د سرکښو سر که ورشي تر آسمانه    په دوه ورځې پس ئې ځای زير زمين دی

چې/که ښيوه ئې وي په سر کښې او لوئي کا    د رحمت لياقت نه لري لعين

که صورت ئې د سړي سړي باله شي    په معنی کښې سړی نه دی شياطين دی

که رحمان څخه متاع د دنيا نشته    شکر دا چه نه خودرای و نه خودبين دی

۲۹

مخ د یار شمس و قمر درې واړه یو دي
قد د سرو و صنوبر درې واړه یو دي

حاجت نه لرم په شهد و په شکرو
لب د یار شهد و شکر درې واړه یو دي

که بې یاره په بستر د پاسه پروت یم
نار و خارو دا بستر درې واړه یو دي

چه ئي در و هم دیوار وته نظر کړم
باغ بوستان و دغه در درې واړه یو دي

خدای د یار له هجره هیڅوك خبر مه کړه
تاخت و قتل دا خبر درې واړه یو دي

چه غبار ئي د کوڅې را باندي راشي
دا غبار مشک و عنبر درې واړه یو دي

هغه دم چه سړی درومي له جهانه
تورې خاورې سیم و زر درې واړه یو دي

قلندر چه په رښتیا قلندري کا
خان سلطان و قلندر درې واړه یو دي

ور دي نه شي په پرد زمکه هیڅوك
کور و کر و مبصر درې واړه یو دي

چه دي نه په کښي یو یار نه دي آشنا وي
هغه ښهر ، بحر و بر درې واړه یو دي

په دکان د نابیناؤ جوهریانو
خر مهره لعل و ګوهر درې واړه یو دي

پسران دي عار زما له عشقه نه کا
پاک عاشق پسر پدر درې واړه یو دي

په سبب د ظالمانو حاکمانو
ګور و اور و پېښاور درې واړه یو دي

غزا وشوه که ځان ستائي و رحمان ته
بې هنره ګاؤ و خر درې واړه یو دي

۳۰

چه دا هسي لاس په لاس دنیا پرېښودي مښو دي
څه چوا چندڼ په ځان پوري

دا دنیا په مثال پوله مرگ سیلاب دی د سیلاب په مخ کښې خه پوله ایښو دي

جل زلمي لا واده نه وي سره کونړ وي/شي دا رنگ چارې د مرگي په/د خرخښو دي

قافلې چه په دنیا کښې شوې داخلې بیا هم هسې معلومیږي چه د لښو دي

دا سفر به په هغو باندي آسان وي چه تر کوچ پخوا په زیرمه د توښو دي

چه بې وقته ارمان کا په وقت اوده وي د هغو عالمو ږیري د وکښو دي

په هر شان چه یار خو ښیرې زه هغه کړم خپلول د صاحبانو په پیښو دي

د یار غم مي لکه تاج دی/وي په سر ایښی نور غمونه مي همه لاندي تر پښو دي

معشوقې په عاشقانو خود پوهیږ ي دلته خه د عاشق نښې د ښو دي

میخواران که ئي خبر شي له مست نه د رحمان د میخانې شراب د څښو دي

په خپل ځای به یې هرهر کلام په کار شي رحمان ... طالب لره د ښکو دی

۳۱

زه بلبل ستا د وصال یم بوستان خه دی ستا د وصل په نسبت گلستان خه دی

چه آشنا شي ستا له دره له دیواره انتظار ئي په روضه د رضوان خه دی

چه روزي ئي شهادت شي ستا له تیغه احتیاج ئي په چشمه د حیوان خه دی

چه مسکن ئي د زړه ستا د زلفو خم شي و هغو ته د عطارو دکان خه دی

بوالهوس که بوسه غواړي له تا خه شو هر رنگ هر رنگ ویل کاندي نادان خه دی

هر چه لاندي خپل وجود تر خپل قدم کا عرش ئي لاندي تر قدم شي آسمان خه دی

زه چه ستا له غمه ژاړم آه فریاد کړم برق و رعد چکاره دی باران څه دی

ځان جهان مي هسي ستا په مینه هیر دی نه پوهیږم چه ځان څه دی جهان څه دی

ته چه نه ګورې و ما ته لړ مي پوه کړه په دا کار کښي دي ضرر و نقصان څه دی

زه بې صبره یم که مهر د ستا نشته له دې دواړو دي په زړه کښي ګمان څه دی

که ستا سترګې دي قاتلي زه مقتول یم وایه نور دي په خاطر کښي ارمان څه دی

چه مي ویني ترو مي څه پوښتې له حاله له عیانه احتیاج د بیان څه دی

هر چه وایې ستا رس د رحمان غاړه و توانا ؤ ته حجت د ناتوان څه دی

۳۲

خښ مي ستاد ښو غشي په سینه دي پورې اووري/پور راپورې مي وتلي تر اینه دي

تل ئي مخ د یار په مخ باندي وي ایښی هغه زړونه چه بې زنګه آئینه دي

هسي نه چه زه نن ورځ په تا شیدا یم ستا غمونه مي په زړه کي دیرینه دي

لکه ستوری چه بریښنا کا په آسمان کښي په ټټر مي ستا داغونه نګینه دي

درته وایم چه له آهه ئي پرهیز کړه د هغو چه پوشاکونه پشمینه دي

که دا ستا رخسار سوزاني لنبې نه وای ولي کسي زما تور سوي نینه دي

څه به سم په صبحدم ګورې و چا ته چه دي سترګې په مې مستې شبینه دي

هغه سترګي چه پیدا کړې خدای خونریزې بې غضبه په غضب او په کینه دي

شرابیان چه شراب مومي خو ئي شومي کله منع په اختر په ادینه دي

چه تمام د خپل ځګر په وینو رنګ شه د رحمان خبرې ځکه رنګینه دي

۳۳

د عاشق نظر په خورد و په خواب نه دی مراد ئي بې د یار له دره بل باب نه دی

ته نظر په خپل هنر په عقل مه کړه دا اسباب په عاشق کښي اسباب نه دی

چه د یار سره حساب د دنیا کاندي دغه هیڅ په عاشقانو حساب نه دی

چه عاشق په عاشق کښي ارباب/رباب نه شي که د درست جهان ارباب وي ارباب نه دی

هر چه یار منع کوي له خپله یاره دا کتاب د عاشقانو کتاب نه دی

دا حجاب چه نور عالم ئي حجاب بولي دا زما د یار تر میانه حجاب نه دی

که ثواب دی هم سِوا د یار له مخه ما ګڼلی دغه کار په ثواب نه دی

که لیدلی زلیخا یوسف په خوب ؤ ما په ویښه دی لیدلی په خواب نه دی

صبر ونیسه په مخ کښي که مراد غواړې هیچا کړی دغه کار په شتاب نه دی

رحمان سوال د بوسې کړی دي له یاره لا ئي هیڅ ځني موندلی ځواب نه دی

۳۴

د عشق زخم څه د زخم په شان نه دی د بل زخم په څیر سهل و آسان نه دی

عاشقان او معشوقې سره پوهیږي دغه راز و نور عالم ته عیان نه دی

عاشقي نه ده که ګورې حیراني ده! کوم سړی په دغه کار کښي حیران نه دی

يو عاشق دي څوك را وښيي په عشق كښيچه ئي رود په مخ د اوښكو روان نه دی

همره اوښكې د عاشق په ګريوان ووري ته به وايې چه يو سيند دی ګريوان نه دی

دا هجران دی چه ئي مرګ په عاشق ګران كړ كه هجران ورسره نه وي/هم ځان ور څخه درومي هيڅ ګران نه دی

۳۵
نور غمونه كه په ځان د سړي بد دي غم د تركو بد د هيچا په ځان نه دی

ددوزخ د اور كه تاو له حده تير وي برابر د بيلتانه د نيران نه دی

چه باله شي څوك په عشق كښي كم عقل دا كم عقل ډير هوښيار دی نادان نه دی

چه بې ياره و/زه جهان وته نظر كړم رحمان وايم چه ويران دی ودان نه دی
۳۶
هر نګار چه بې وفا دی نګار نه دی په ګلزار كښي چه ګل نه وي ګلزار نه دی

هغه يار چي اخلاص نه لري يار نه دی هغه كار چي بې فايدې دی څه كار نه دی

په تلخ د ميو مست خلق مي خوښ دي هغه خار چه بوي د ګل لري خار نه دی

ديناري دنيا داري دي (څبله)ځبله لري ما ليدلي هيڅ ديندار دنيادار نه دی

كه روزګار دی په جهان كښي عاشقي ده د دې نور عالم روزګار څه روزګار نه دی

چه تصديق ئي په خپل زړه كښي محكم نه وي دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نه دی

په هر زړه چه د خپل يار د غم غبار وي دغه ابر د رحمت دی غبار نه دی

چا به کسب بې له عشقه نور څه نه کړه باري گنج دی چه هر يو ته اظهار نه دی

معشوقه وفا له هيچا سره نه کا گڼه کوم يو ددې رخت خريدار نه دی

د خپل يار/دلدار وصال د خدای په داد مونده شي دغه کار مي د هيچا په اختيار نه دی

په رحمان باندي منت د معشوقو دی د بې حسنو معشوقو منت بار نه دی

۳۷

هغه يار چه بې وفا دی څه يار نه دی | هغه کار چه بې بقا دی څه کار نه دی

که د سر ښيندل دشوار په ما و تا دي نه دی | دا په عشق کښي سهل کار دی دشوار

انديښنه سړی بيدار کاندي له خوبه | کم انديشه که بيدار دی بيدار نه دی

که څه عمر دي عاشق لره وصال دی | د هجران عمر د عمر په شمار نه دی

د چشمانو په (ځنبل)ځنبل کښي تير و بير شي دی | اعتبار د زمانې اعتبار نه

که د سلو زويو پلار شي به ئي څه کا نه دی | بې وقوفه زوی د پلار څه په کار

معشوقې هميشه ناز په عاشق کاندي دی | رحمان هيڅ له خپله ياره آزار نه

نه شها زما په سترګو کي جلوه کا دی | ماه و مهر يې سېنه مخ يې آينه

۳۸

عاشقان دي په اور سوي دي که نه دي نه دي | ستا د عشق په اور الوي دي که

زحمتونه د هجران واړه په عشق کښي دي | تا و ما وته ښوولي دي که نه

په دنيا کښي خو يو سر و مال ويل شي دي | دواړه ما په تا بايلوي دي که نه

تل د وروځو په ليندو د ښو غشي | تا په ما باندي را کښلي دي که نه دي

چه مدام ئي زما زړه له غمه چوي | تورې زلفې دي پيچوي دي که نه دي

راشه وګوره احوال د عاشقانو دي | مړه د عشق په تيغ کوټلي دي که نه

ناصحان چه نصيحت و ما ته کاندي چيري دوي هم مين شوي دي که نه دي

ښايۍسته که په ښايۍست ملايکه/کي ملايک وي په وکښو د زړونو روي دي که نه دي

بلبلان پسې ناري وهي رحمانه د بهار گلونه شوي دي که نه دي

۳۹

دا ژوندي چه معلوميږي واړه مړ ه دي که څه دي هم هسي وايه چه څه نه دي

يا د باد په مخ کښي خاورې دي دا تورې يا د اور په مخ کښي واړه وچ واښه دي

د خپل عمر شپې او ورځې چه په زړه کړم هسي درومي ګويا بهنده/چه د سيند ګويا اوبه دي

غافلان که وينې اوري به ئي څه کړې دا ئي خوب دی نه ليده نه اوريده دي

چه د خدای له معرفته خبر نه وي هغه واړه که بيدار دي هم اوده دي

د رحمان د زړه له حاله خدای خبر دی چه په زړه کښې ئي د يار له غمه څه دي!

۴۰

په ظاهر صورت چه ستا د در گدای دی په معنی کښي د جمله ؤ کد خدای دی

مجنون بيد غوندي رونق د گلستان شي چه ئي ستا له غمه سر په پشت پای دی

چه له غمه دي جرس غوندي نالان دی د جمله ؤ گمرهانو رهنمای دی

چه څوك زړه د ستا و تورو سترګو ورکا ئې ځای دی ستا د ورځو تور محراب لاندي

چه مسکن ئي د زړه ستا د زلفو خم شي د هغو ناستې په سیوري د همای دی

چه تا وويني و ما ته نصيحت کا! شك پرې مه کوه بې شکه چه خود رای دی

که زر دار دي اشنایان د زر دارانو د رحمان د آشنایانو تکیه خدای دی

۴۱

که مطلب و مدعا د سړي خدای دی هر هر مړی د ژونديو رهنماي دی

مسافر که په رحلت کښي ځبله/و بله غږ کا هر آواز ئي خواب آلود لره درای دی

که سړی و حقیقت وته نظر کا ژوندی خلق واړه ناست دمړوپه ځای دی

دا خو بخت دی ځوك ئي سپين و ځوك ئي تور کړه ګڼه عيني لکه زاغ هسي همای دی

لکه فرق چه د همای و د زاغ نشته هم دغه دلیل د شاه و د گدای دی

ته نظر د کاريگرو په کار مه کړه کار همه واړه موقوف په کار فرمای دی

سالکان چه د جهان تماشا کاندي له جهانه ئي مطلب جهان آرای دی

که ځوك خپل دست و پای وباسي له میانه خدای پخپله د بې دستو دست و پای دی

په هغه جهان نیکي و بدي نشته هر مطلب د طالبانو په دا سرای دی

زه رحمان یواځې نه یم په دا کار کښي همیشه د یار په یار پسې وای وای دی

۴۲

که د خلقو و نظر ته آدمی دی خوار عاشق د معشوقې د کوځې سپی دی

هر چه ځان د یار په سپیو کښي داخل کا ترو هاله به ورته وایم چه سړی دی

ما دي خدای د یار له غمه بې غم نه کا دی دا په ملك د عاشق کښي لوئ ورانی دی

زه د یار په غم کښي زیړه څهره خوښ یم دا زما خزان نه دی پسرلی دی

زه ژوندون د یار و وصل وته وایم ګڼه هر یو دوزخي په ژوند ژوندی دی

ته چه ما منع کوې د یار له دره کوم یو در د یار له دره بریالی دی

زه د یار مینې په یار باندي شیدا کړم که څوك ما ګڼي زه نه یم واړه دی دی

چه وحشي مجنون ئي ښهر لره راووست د لیلی د زلفو هسي غړوندی

زر داران که اوبه څښي په جام د زرو زما خوښ دا خپل د خاورو کنډولی دی

اورنګ زیب که د ډهلي په تخت نازیږي خپله خونه هر ګدای لره ډهلی دی

چه له خپله کوره ووزي مسافر شي دی څوك ئي پیژني ساهو دی که مریی دی

چه ئي خاوري شي له خاورو سره ګډې ترو چا زده چه د کوم نیکه نمسی دی

توره شپه په آشنایانو روښا ورځ ده روښا ورځ په نا اشناؤ توروړمی دی

نه دي سترګې پوزه غوږ د کم شناختؤ دی په معنی کښي یو دیوال سوری سوری دی

عاشقان ئي د دنیا له غمه خلاص کړه بادشاه غمی دی عشق په مثل/عاشقي د سلیمان

هر چه حب د عاشق لري په زړه کښي که په قطع صد ساله وي هم زلمی دی

دا هلال دی چه لیده شي په شفق کښي وښی دی که په لاس د ګل اندامې سپین

نا آشنا به بهره څه رنګ/څشکل ځني مومي چه مدام ئي په آشنا پسې غوږزی دی

ځربوې مي قربان لره پوهيږم دی | دا چه کړی دي په ما باندي زړه سوی

چه په نوم باندي باله شي ليده نه شي | معلوميږي چه نر حور يا ښاپيری دی

چه د خط په دود ئي خلق په کښي پريوزي | زنخدان ئي تر سبزې لاندي کوهی دی

زه رحمان له ياره خوښ يم که جفا کا | که جفا نه کا وفا کا ځو تيری دی

۴۳

ستا له غمه مي په مخ باندي ولې دي | لړ مي ويوښته له حاله چه ولې دي

زه په تا پسي مجنون/موسی يم قارون نه يمچه مطلب مي غوا وغيلې يا ګلې/غلې دي

هغه کوډې لکه تا دي په ما کړې | کله کړې په مجنون باندي ليلې دي

لکه ما چه مصلې در پسي لنګ کړې مصلې دي | کوم ملنګ هسي لنګ کړې

بوي هم ستا د وفا نه دی را الوتي | ما پخپله خپلې کړې تسلې دي

نصيحت اثر په زړه د عاشق نه کا | ګڼه يادې زما ډيرې مسئلې دي

که رحمان د عاشق په تيغ شهيد شي | د جنت حورې همه واړه دلې دي

۴۴

چا چه کړې و دُنيا وته اسرې دي | د هغو په سر همه/ د همه واړو په سر خاورې ايرې دي

نادانان که د دنيا په کار نازيږي دي | و دانا ته واړه/وته دا وشتې مسخرې

چه بې خدايه محبت کا هغه خلق خرې دي | نارينه ئي واړه خره او ښځې

و سپين ږيري وته مه وايه سپين ږيريه | همګي واړه طفلان د ګهوارې دي

هسي وايه چه څړ دي د زنانو قرقرې دي ‌‌‌— که ئي ايښي په دستار کښي

چه نه فيض نه بهره ځني مونده شي — همګي واړه بې فيضه بې بهرې دي

ذخيره ددنيا مه کوه رحمانه — دا همه واړه د خاورو ذخيرې دي

په هر ځاي چه ستا ثنا شي ښيوه ګرې — خر مهره شي هلته در و مرغلرې

د هغو سترګو به اوښکي وي ګلرنګې منتظرې — هر چه ستا په ګل رخسار وي

هغه کله د ناصح خبرې اوري — هر چه اوري ستا خوږې خوږې خبرې

مرور کاندي عاشق له جمله خلقو — معشوقې له هيڅا مه شه مرورې

په ساعت کښي سړی مړ کا هم ژوندی کا — طايفې دي د خوبانو سحر ګرې

زه ځان ډوب ګڼم بې تا په خپلو وينو شکرې — که مي ډوب کا څوك په شهد و په

لرې لرې غم دي واړه را نژدې کړ — چه له مخه دي حجاب کړ راته لرې

چه مي نوم د ستا د زلفو په خوله واخيست — را پسې شوې د بلا تورې لښکرې

هيڅ په حق د حقدارانو نه ګروهيږې — هميشه زما د زړه په وړو منکرې

زما ستا مينه څرګنده په جهان ده نغرې — ولي دا رنګه څرګنده ګواهي

زه چه ستا له غمه ژاړم آه فرياد کړم سندرې — د رقيب کره هم ډول وي هم

چي ميوه يې د کابل خوږلې نه وي — د هغو له فهمه وځکي شي ګرګرې

د ړندو سترګو حاجت د رانجه نه وي — په بد رنګه ناوې څه وايې سندرې

که په غره په سمه ګرځم باک مي نشته ژورې
زمري تل ګرځي په لوړې په

د رحمان شعر به ولي نادر نه وي
چه ثنا کاندي د تا غوندي نادرې

۴۶

عاشق□ را باندي سورى/ې کړې مر□
هيڅ مي نه درومي بې ياره ترمر□

څه اثر به ئي د عقل وي په سرکښي
د هغو په سر چه کښېني ښاپير□

د مژګانو په پنجه مي زړه راکاږي زمر□
خداى د ترکو مستې سترګې کړې

علوفه به ئي بې غمه نور څه نه وي
هر چه کاندي د خوبانو چاکر□

لږ د صبر سبق ما لره هم راکړئ لر□
که په عشق کي څوك دغه طاقت

خدايه څه دې د کوټوال په لاس کښي ورکړم چه شپه ورځ مي غږوي لکه تور□

په صورت مي نر□ تبه شوه ولاړه
تا چه دواړه سترګې تورې کړې نر□

د وصال دلالان کوم طرف ته غواړم؟
چه بندي شوم د هجران په کچر□

نور د شمع په فانوس کله پټيږ ي نر□
تا چه واغوستې د خيال جامې

زه رحمان په زړه نرى کړم هغو ترکو
چه ئي ملا وې د ويښته په دود نر□

۴۷

که له تا ئي شرم نه کيداى مهر□
مخ به پټ نه ؤه د حورې د پر□

چ□ آفتاب دي تر رخسار پورې خجل شه قمر□
له دې ويرې زيست په شپه کا

ستا تر حسنه پورې حسن واړه هيڅ دى
نيست په څه له هستو کا برابر□

بې د ستا د تورو سترګو جادوګرو
کوم آهو د بيابان زده وي دم ګر□

ستا د عشق د تورې هسې رنگ گذار دی چه له مخه ئي حباب شي/وي ککر

دلبري او دل جويي لکه د ستا زده چا زده هسي دلجوي او دلبر

حسن واړه د عاشق په عشق موقوف دی معشوقه که فرشته وي که چوړ/چور

و عاشق ته د یار غم واړه ښادي ده د رضا په ملك کښي نشته دلگير

دا دستور دی چه له درده زگيروی خيژي/خېږي ګڼه څه وو د رحمان له شاعر

۴۸

ستا د تورو سترګو په یاداشت مي اوښكي اوري   حق دي كه پریوزي په شبرات د غم كښني/عمر ستوري

زلفې دي سایه كړي مخ دي اور په جهان بل كړه   هر چا ته چه ګورم نیم په نمر/نوَر وي نیم په سیوري

څوك دي په وصال كښي قند نبات څوك ځګر خون خوري  چا وكړو دیدن د چا شو سپین د سترګو توري

اور ستا د رخسار دی ما په خپلو اوښكو بل كړو             تل په آتش سوزي آئینه چي نمر ته ګوري

سترګي مي د ستا له خیاله پریوتې و زړه ته     څه شو كه مي بې سترګو صورت ځي په بل لوري

كله رقیبانو ته نظر كړې كله ما ته                        ستا باران د مهر په ښو بدو یو شان/یكسان ووري

ځان په مستو سترګو باندي مه غۇلوه رحمانه               دا مستان هوښیار دي  له حكمته سره ښوري

۴۹

غم خواري دا هسي چري وي غم خورې                 چه به ما دلته كښني ناست لرې ته دورې

هغه خدای  چه ئي ستا مخ  بله  لنبه  كړ                    دا لنبه ئي كړه زما  په ګوګل پورې

هم هغه دی زما تور لیمه سره كړي                         چه ئي ستا لاسونه سره كړه سترګي تورې

غل خو غلا د سرو مال په توره شپه كا                    ته په ورځ زما  د سر ود مال چورې

اصیل نه دی چا پیرودی نه یې پلورلی                    ته اصیل  په دیدن پیرې هم ئي پلورې

دا كوم رنګ د آشنائي او د یار/ورور دی              چه زه ستا د مخ ثنا كړم ته مي زورې

درخانې په سل غمونو خدای اخته کړه گوري | زه به ولي له تا زار کوم که
--- | ---
زه و تا وته د ستا له جوره ژاړم نورې | ته را واخلې سل گيلې نادرې
د رحمان په عاشقۍ به آفرين کړې وگورې | که لږ مخ په آئينه کړې ځان

۵۰

ته په هره گړۍ غم د سيم و زر خورې | زه دي هره گړۍ وينم چه خپل سر خورې
عاقبت به دي يو خنډ تر/له سينې ووزي | ته چه تل په هر هر/يو ښاخ باندي ثمر خورې
معلومېږي چي خپل غم درسره نشته | ځکه غم د برادر او د پسر خورې
په عوض ئي کوم طاعت کړې راته وايه | دا نعمت چه په هر شام و هر سحر خورې
روژتي په خلورم پهر/څلور پار پس افطار کا | ته څلور ځله طعام په هر پهر خورې
که يو ځله تر کماله ورسيږ ې | نور بهغوښې د خپل ځان لکه قمر خورې
که ښيښه د نام و ننگ دي شي تر څنگه | د هر چا په کجروۍ به خپل ځگر خورې
بې هنروله قند هم زهر قاتل دي | قند ئي وگڼه که زهر په هنر خورې
نهال په زړه د صبر نخل کړه رحمانه | چه مدام د بر خوردارو په څير بر خورې

۵۱

له چشمانو مي له غمه اوښکي اوري | چي اغيار ته يار ځما له قصده گوري

سر و مال به د قاصد تر راتلو جار کړم لوري چي خبر راله راوړي د يار له

تر سرکي پيزوان يې جار شه قلندره ښوري لکه مست هاتي مدام په ځنځير

ته چي راغلې خوبان واړه پسې شا شول ستوري لمر چي وخيژي نور ځي پټېږي

شينکی خال دي د جبين په مخ کي زيب کا لکه حوره د طوبی ونې تر سيوري

په رحمان د ښغم ساعت حرام شو ړي لکه ښېد مجنون بې شماله ښوري

۵۲

تر ابدې ورځې پوري به جفا کړې که به مهر وفا هم چيري پيدا کړې

معشوقې کله وفا کله جفا کا مي بايد چه کله هغه کله دا کړې

ما ستا خوي دی وهر چا وته ستايلی چا کړې چيري نه چه دروغژن مي تر هر

چه د ستا دغه خصلت دی زما اوښکې جهان رسوا کړې دا پټ راز به مي په درست

ستا څه لاس را باندي نه رسي دلبره کړې چه په لاس د رقيبانو مي سزا

مرم په دا چه د اغيار په رضا درومې نه په دا چه ته په خپله ځان رضا کړې

چه دغه اوښکي زما دغه خوي ستا وي رسوا کړې دا پټ راز به مي په درست جهان

په درست عمر به هيچا ليدلې نه وي کړې هغه چارې چه ته هر ساعت په ما

ما رنځور په کټ کښي پرېږدې چه کړېږم ته لا ګرزې د رقيب سره خندا کړې

لاس تر غاره د رقيب سره خندا کړې چه ما ووينې له قصده راته شا کړې

هر بيگاه وايې چي خوله به سبا درکړم		دا بيگاه به په رحمان کله سبا کړې

۴۹ په پيرۍ کښي چه هوس د (ميو)مى و ناب کړې		بيهوده گمان په صبح د مهتاب کړې

بې طاعته عنايت له خدايه غواړې		د عتاب په ځاي اميد ته د ثواب کړې

دانسته گناه کوې توبې وکاږې کړې		لکه بت هسي په غټو سترگو خواب

پۀ هغو غورو چه ذکر د خداى اوري		بيا سماع په هغو غورو د رباب کړې

په هغو شونډو چه حمد و ثنا وايې کړې		هم هغه شونډې بيا ړوبې په شراب

علم وکړې هيڅ عمل ور باندي نه کړې		لکه طفل هسي لوبې په کتاب کړې

په شپه پروت يې د مغان په ميخانه کښي محراب کړې		او په/د ورځې مخ په لورې د

تمام عمر د دنيا په طلب گرزې کړې		بيا د خداى په طالبانو ځان حساب

له خالقه دي نه شرم نه حجاب شي/وي کري		له رحمانه گوښه ونيسې حجاب

۵۴ چه مدام د بل و عيب وته نظر کړې		خداى له خپله عيبه ولي نا خبر کړې

که يوه جو دانه عيب وينې په بل کښي کړې		هغه يو جو دانه عيب به ئي لوي غر

که دي خپله گناه لويه لکه غر وي		په حيله حيله به غر د مچ وزر کړې

که څوك تله د انصاف په لاس کښي درکا		خپل ټټو او د بل آس به برابر کړې

تو لعنت دي په دا هسي منصفي شه گذر/نظر کړې		چه له حقه و باطل وته

خدای و تاته /و تا د ملائکو مقام درکړ ته دا خپل صورت پخپله ګاو و خر کړې

په نعمت يې شکرانه کولای نه شې کړې چې زحمت درباندې راشي شور و شر

چې خدای ستا په رضا کار کا ستا هم بويه چې دا خپله رضا واړه و خدای ورکړې

نه هغه چې دی به ستا په رضا کار کا کړې ته خپل ځان دده په کار کې مقصر

که دې يو ويښته د ځان د پاسه کوږ شي مرور کړې ځان هغه ساعت له خدايه

که ښندلې دې په خدای وې يو کيکوړی/ککوړی نمر کړې نمايان ئې په جهان کښې لکه

لکه څوك تر مکې لاړ شي ببرته/(يا)بيا ترې راشي د دنيا دپاره هسې لوې سفر کړې

که يوه رت دې زر/د زر دې په لاس کښې کښيوزې زر کړې خرڅ خروار د عبادت په رت

د ځوان عمر دې تير کړو په غفلت کښې په پير کښې به څه زيرمه د محشر کړې

په دنيا پسې دې نمرې دې رنګ کړې کړې ځان و خلقو ته درويش و قلندر

لکه وار چه د زړې لول تير شي اوس توبې له ضرورته په سپين سر کړې

په پير کښې د ځوانې چارې نه شي اختر کړې ته په ورځ د عاشورې به څه

لکه بيخ د زړې ونې چنجې وخورې په دا تير عمر به څه ښاخ و ثمر کړې

دغه باغ به دې خلاص نه شي له خزانه کړې که چاپير ور ځنې سد د سکندر

و بد خواه وته څوك نيک نصيحت نه کا کړي رحمان ستا په غم شريك دی که باور

۵۵

د آشنا له لاسه ناست يم په زړه ستړی درست وګړی په فلوس مې په کار ندی

چه په ژوند ئې طمع پرې کړای شي له ژونده پرې کړی نور په څه باندي ويرېږي سر

که ژوندون د عاشقانو په وصال وي زه محجور يم په دغه روايت مړی

خوږ ژوندون مي جدايئ هسې تريخ کړه رانغړی چه له غم له تخئ دم نه شم

دا صورت په مثال خس محبت اور شه پړی چه په پوزه ئې پېزوان شه د عشق

لاعلاج به لکه اوښ باربرداري کړه ترو د اور په مخ کي څه کاندي خسنۍ

له احواله ئې ورو ورو پوښتئ يارانو ببلتانه د رحمان وار دی خطا کړی

۵۶

څو به هسي آزادي په دا جهان کړې چي خبرې به د سر و د سامان کړې

همېشه به دا بهار درباندي نه وي کړې چي به سيل په بوستان په ګلستان

واړه ځر دي بدلوې يې په مشکنيو کړې هر تلاش چي د دنيا په سود وزيان

غمخواري د آل عيال دي احمقي ده نقصان/تاوان کړې چي د بل په زېرمه ګرځې خپل

په نفاق کي به ضايع شې مرد هاله يې کاروان/خپلوان کړې که پخوا تر دښمن جمع خپل

چي په دوو ببړيو پښې ږدي هغه ډوب شي ببهوده دلبستګي په اين و آن کړې

۵۷

خدایه مه کړه نا امید هغه وګړی چه امید ئي وي د ستا په کرم کړی

ستا له رحمه به زه ولي نومیدي کړم چه دي ځان دي د رحیم په نام نومړی

خواست زما قبول کړې ای مالک الملکه ستا د اسم اعظم روی مې دی دروړی

خلاص یې مه کړه بندیوان ښه دی چي مرینه چي په غاړه یې وي ستا دمیني پړی

همېشه به رنځړی او ربمن ګرځي چي یې نهال وي په سینه د میني زړی

دا نیمګړی سړی ننګ هم د خپل نام کا ته خو خدای یې چه په هیڅ نه یې نیم ګړی

هیڅ بنده دي په بندګي/بزرګي کښي لیده نه شي چي/څو تا خط د آزاد نه دی ورکړی

دا همه واړه شومیت دی د شومانو ګڼه ته د چا په زیرمه نه یې سټړی

چه بې تا ئي په زړه بله سودا ګرزي تر مقصوده به و نه رسي وګړی

هر چه ستا په لار قدم د راست کیږدي که ئي زیان وي زه رحمان ئي پوروړی

۵۸

خدایه زړه د رقیب نرم په احسان کړې ماله یاره یار له ماسره یکسان کړې

هغه درد چه د آشنا د بیلتانه دی دفع رفع ئی د وصل په درمان کړې

ته چي ما منع کوې د یار له لوري کړې کشکي باد د سحر منع په بوستان

غم د هجر چه تیری، تر اوره سخت دی کړې له دی غمه مي په امن په امان

کاروبار د عاشقئ چه ډیر مشکل دی دا مشکل زما په ما باندی اسان کړې

حجاب لرې کړه زما دیار تر میانه بی حجابه مخ د یار راته عیان کړې

که مطلب د نورچا نورې مرتبې دي ما ګدای په آستانه د خپل جانان کړې

که دا نور عالم و بلې خواته ګوري ما په لوري ددلبرو نګران کړې

نه به ما منع کړې ته، له خپله یاره کړې نه به کوز په ځمکه ستوري د آسمان

زه چه یار لره ورځم په هغې لارې کړې مهتر خضر مهتر الیاس می رهبران

تاریکي د معصیت راځخه واخلي د طاعت په روښنائ می زړه روښان کړې

۵۹

چه زما په پریشانئ ئې زړه ښه کیږي کړې زړه ئې ما غوندې په یار پسې پریشان

چه زما په چمن راشي ګستاخي کړي د شبنم په څیر ئي عمر یو زمان کړې

چه آزاده د منکر تر سره پریوزي د فلک په څیر مي توره د زبان کړې

هغه غشی چه د ترکو د غمزو دی هر کلام می دهغه غشي پیکان کړې

چه کشور د افغانانو معطر کا/شي د هر بیت مسر/مصرع مي زلفې د خوبان کړې

چه هرحرف ئې دنافو هسي خوشبو شي/وي برکت مي په جزدان په قلمدان کړې

الهي د خپل حبیب له برکته دا ساده انشآ رنګینه د رحمن کړې

۶۰

ما په تا پسې دا سپیني جامې رنګ کړې کړې ته لا بیا په ما ګمان د نام و ننګ

هیڅ اثر دي په سنګین خاطر و نه شه کړې که هر څو مي مصلې در پسي لنګ

دل سوزي به دي په نور وګړي څه شي/څو وي جنګ کړې چه له ما غوندي مخلصه سره

ته په عشق کښي ما هاله دروغژن بوله ملنګ کړې — که یو بل هم هسي ما غوندي

دا نارې سورې په عشق کښي دي غمازې کړې — ګڼه تل/ما به د بلبل په څير پتنګ/آلهنګ

عاشقي و معشوقې ته سپینه لار ده — ته و ما وته دا سپینه لار ګړنګ کړې

چه یو دم مي له نظره پناه کېږي/ته یو خوا شې — دا جهان لکه لحد را باندي تنګ کړې

په ښه خوي سره د خلقو افسانه وې/یې — خدای زما له کمه بخته په زړه سنګ کړې

دا دي څوك له ښنګه ناست دی نه پوهیږم — چه خبرې د رحمان سره په ښنګ/جنګ کړې

۶۱

که د عشق شکرې تیرې تر ګلو کړې — نور لذت به لکه زهر هسي تُو کړې

که دي وشي ملاقات له سرو قدو کوکو کړې — د فاختې په څير به کوکي په

عاشقي به تیره توره در په لاس کا ملك به هو کړې — ترو/نور د صبرد سکون/سکوت په

په انصاف و عدالت به نوشيروان شې ترازو کړې — هر عمل به/چه د خپل ځان په

د سکندر په څير جهان به در څرګند/دي روزي شي که سرکوز په آئينه د خپل زانو کړې

تریخ لوګی به دي د قند په څير نغړده شي تمباکو/تماکو کړې — که صورت د عشق په اور کښي

وبه نه وینې د ترکو برندې/مستې سترګې کړې — مګر ځان په خپلو وینو کښي سالو

که یو ځلې تورې زلفي په شانه کړې — خاکستر به په چمن کي کشمالو کړې

درست جهان به قاف تر قافه معطر شي کړي | که يو ځله شانه ګډه په ګېسو
ستا د زلفو مار خوړلی به روغ نه شي | که افسون د مسيحا ورباندي پوه کړي
لاس و پښې دي بې زيوره ښايسته دي | څه منت به د پايلو د باهو کړي
که سوزن د ښو راوړي تار د زلفو | د رحمان د زړګي زخم به رفو کړي

۶۲
تا چه مخ د پر سترګي د آهو کړي | نه پوهيږم چه آهو يې که جادو کړي
دعاګو چه د چا ومري څه ښادي ده | ته په څه زما و مرګ وته آرزو کړي
په محراب د عاشقانو کاڼي ووري | ته چه چين د جبين غوټه په ابرو کړي
تا چه رنګ د ګلو واخيست زه پوهيږم ګنګو/کنګو کړي | زرغونه به په څهره/چهره زما
ستا له ډيره ډيره ځوره/جوره معلوميږي کښي لاهو کړي | چه به ما پخپلو وينو/اوښکو
روغ به نه شي بې ديار له ښه ديدن نه لو کړي | که سل پنډه سپيلني و ځان ته
د غفلت ليچن ليمه به دي بينا شي څښکو کړي | که د يار د کوڅې خاوري دي/ته
دا (دوا که بد دوا)دارو بد دوائي کوې طبيبه کړي | چه د يار په درد و غم کښي مي دارو
نصيحت په عاشقانو اثر نه کا | دا محنت واړه بې ځايه بې قابو کړي
په رحمان باندي بې ياره خواب حرام دی پهلو کړي | که ئي سل پالنګه/بالښته لاندي تر
۶۳
که نظر په ماتو ګوډو د روزګار کړي شمار کړي | همره نه دي چي حساب يا به ئي

په هر غم کښي خاموش اوسه او که نه وي د بد خواه خاطر به ښه ددوست/ښاد دوست به آزار کړي

صبر ونيسه په مخ کښي که مراد غواړې په تلوار به هيڅ و نه کړي که تلوار کړې

رضا پاسله و قضا ته فراغت شه او که نور څه نور څه وايې ځان به خوار کړې

آزادي او کاروبار دي سره لري لاس له کاروباره وکاږه که کار کړې

چه پخپله ئي فاني بولې رحمانه ترو بيا څه په هغو چارو اعتبار کړې

۶۴

ولې ولې و عاشق ته نظر نه کړې دا گدای په ديدن ولې توانگر نه کړې

ستا دې ډيرې حيا ډير کورونه وران کړ ل چه هيچا وته کاته برابر نه کړې

ستا په ډير حسن مي دا عقيده نه شي نه کړې چه دا روغ وگړي واړه اوتر

ته پلو له مخه واخله زه ضامن يم که اورنگ د زمانې قلندر نه کړې

زما هر زمان هر دم په تا گذر دی/وي ته يو دم زما په لورې گذر نه کړې

لکه ته چه دلاور زما په مرگ يې چيري دا رنگه رقيب دلاور نه کړې

زه د ستا په جفا خوش يم تل تر تله کړې که غماز مي له دې رازه خبر نه

گذشته جفا دې واړه/جوروجفا دي آواره وي که دا جور و جفا بار ديگر نه کړې

هغه څوك دي چه به ستا له دره درومي کړې که ئي ته له خپله دره بدر نه

سنگدلي ده هغه خلقو لره ختمه کړې چه ئي ته په مجلس ورشې اثر نه

رحمان ستا ميني رسوا کړ بارې حيف دی چه ته هيڅ په دا خبره باور نه کړې

ځښتن لاس د سپي په سر باندي راکاږي سر نه کړې — ته تش سیوری د مخلصو په

زما هر زمان په تا باندي ګذر وي — ته یو دم زما په لوري ګذر نه کړې

۶۵

و خوبانو وته ولي نظر نه کړې — د چمن په گلو ولي گذر نه کړې

دا بهار چه درست جهان ئي معطر کړ — دماغ ولي په دا بوي معطر نه کړې

رضا ولي په قضا سپارلی نه شي؟ — دغه زهر په ځان ولي شکر نه کړې

جك زده چه په نارو د مرگ خبرېږ ې — ځان پخوا تر مرگه ولي خبر نه کړې

چه دي نور خلق په سر اچوې خاوري — ته پخپله خاوري ولي په سر نه کړې

پس له مرگه چه بیا مرې له لوږې تندې نه کړې — ولي نن ساعت توښه د محشر

دا ویل دي اثر کله کا په نورو — اې رحمانه په ځان ولي اثر نه کړې

۶۶

چاچي نمري وي په خپلو وینو وللي سپېځلي — د شبنم په ځبر به تل وي سپین

چي صیاد ځخه د اوښکو دانې نه وي — د هوا مرغان هیچا نه دي نیولي

هر یو مخ کله لایق د آبرویي وي — اوښکي نه درومي په مخ د هر ناولي

هر شپه به شمع څه لره ژړا کا — که یې نه وي په ژړا کي څه موندلي

چي سېلاب د عاشق ورباندي راغل — مخلوقات په مخه لاړل لکه خلي
ما رحمان به ژړا نه کړه له خوبانو ښکلي — که مي نه وي په قسمت دا هسي

۶۷

د لمرمخ چي/نمر سپوږمۍ که ستا له حسنه/مخه نه شرمېږي دوي ولي زرغونه و زیړ ښکارېږي

دا سپوږه چه ئي نه سر شته نه ئي پښې شته    په کوم حسن به له تا سره سميږي

زړه مي يووړ ستا د مخ په روڼا زلفو    باري غل په سپين سبا کله پټيږي

خم ابرو يې د پناه د زلفو تم شو    د لړم لشه له مار سره تاوېږي

که قامت دي څوک شمشاد بولي غلط دی    د لرګېو په نرخ سپين زر نه يافتېږي

و (دندان و)سپين غاښو ته دي در ويلي نه شم    کاڼي کله د بريښنا په دود ځليږي

ستا د زلفو د ابريو له وحشته    همګي لړم ماران دي چه وريږي

مخ دي اور خط دي سبزه ده زه حيران يم    چه سبزه په اور کښي څرنګ/څنګه زرغونيږي

اور اوبه سره چا ګډ ليدلي نه دي    دا قدرت دی ستا په لبو کښي نمائيږي

لکه لوند زوړوکی تاو کړي َنو ئي وځي/ووزي    ستا له غمه مي رنګ زيړ پوست مي وچيږي

سپوږه هم دا هسي تاو خوري ستا له مخه    چه په هره مياشت کښي دوه دوه(ځايه)نيمه کيږي

ستا قامت که څوك شمشاد بولي غلط دی    د لرگيو په نرخ سپين زر نه يافتيږي

خم ابرو ئي په پناه د زلفو تم شو    د لړم لشه له مار سره تاويږي

باريك خط ئي زلفو لاندي کړ رحمانه    مورچگان د شپې له مخه پايماليږي

۶۸

صبحدم چه هغه ياررا باندي راشي    عجب نمر د نمر د پاسه هويدا شي

ښکلي مخ لره حاجت د سينګار نشته    بې ترتيبه چه نمر وخيژي روڼا شي

چه ئي ووينم له ورايه پوري ښلم    لکه پيښ چه و بله کاه و کهربا شي

ما له ډیري ناچار و یار ته شا کړه ناروا د ضرورت په ځاي روا شي

زه په وصل کښي خواري د هجران ژاړم د هر کار فکر تر کاره لا پخوا شي

لا پخوا تر جدای نه ژړا بویه ګڼه هلته هر یو ژاړي چه جدا شي

وصال نه دی چا په سرومال موندلی مګر غاړه په دا کار د چا ادا شي

زه به سرومال د یار تر نامې ځار کړم دا په عشق کښي سهل کار دی که په دا شي

د رحمان په اوښکو هسي رنګ پوهیږم چه آخر به په تمام جهان رسوا شي

۶۹ کر د ګلو کړه چه سیمه دي ګلزار شي اغزي مه کره په پښو کښي به دي خار شي

ته چه بل په غشیو ولې هسي پوه شه چه هم دا غشی به ستا په لور ګذار شي

کوهی مه کنه د بل سړي په لار کښي چیري ستا به د کوهي په غاړه لار شي

ته چه هر چا ته په خوارو سترګو ګورې لا پرومبی/وړنبی به ستا صورت تر خاورو خوار شي

آدم زاد په معنا واړه یو صورت دی هر چه بل آزاروي هغه آزار شي

که ته نه کوې نظر د چا و عیب ته هر سړی به ستا د عیبو پرده دار شي

دهقان کر په لوړه زمکه باندي نه کا سرکوزي کوه چه ښڼ دي مرغزار شي

د مات لوښي آواز کله ثابت خیژي د هر چا عمل څرګند په خپل ګفتار شي

نن چه صبح ده روښانه لار سهي/صحیح کړه ناګهانه به دا صبح شب تار شي

لړ ئي مه ګڼه که هر څو ګناه لړ وي چه لړ لړ وبله جمع کړې بسیار شي

که بل بد کاندي ته ښه ور سره وکړه شي | هر یو نخل چه میوه لري سنګسار
تل و ښو وته آزار د بدو رسي دوڅار شي | هر چینجی و نرم چوب و ته/ته ور
هغه زړه به له طوفانه په امان وي | چه کشتۍ غوندي د خلقو باربردار شي
خدای دي بد له لاسه نه کا او که وي هم | د رحمان دې له کل بدو استغفار شي

٧٠

هر وګړی چه منصور غوندي په دار شي	دار ئي پس له مرګه نخل میوه دار شي

روغ صورت که روغ عالم لره کمال دی	لیوني لره کمال دی چه سنګسار شي

هر ګیاه چه و کمال ته ورسیږ ي شي	سر و/ئي زمکي وته کوز وي نګونسار

نری باد به ئي په خپل منزل داخل کا شي	که څوك پاښه د خزان غوندي طیار

غفلت هیڅ مناسب نه دی په/د سپین ږیریوصحبدم که څناور/حیوانات دي هم بیدار شي

چه یو موټی ایرې ناز په آئینه کا	هم په دا خبره فخر د خاکسار شي

کریمانو سود موندلی دی په زیان کښي شي	لکه ښاخ د ونې وتراشې باردار

خزانه په سخاوت سره زیاتیږي شي	د کوهي اوبه چه وکاږې بسیار

مېرول د ورې ګیډې مشکل نه دی	مېرول د وریو سترګو مشکل کار شي

کم خوراك سړی نژدې کا/نزدې شي فرښتو ته	هر سړی چه بسیار خور شي بسیار خوار شي

صافدلانو لره اږ نصیحت بس دی	د ګوهرو پیوستون په نري تار شي

غلبه د عشق بهانه د حسن غواړي شي	توره شپه په عاشق زلفې د خپل یار

د توفیق له مخه هر مشکل آسان دی	و ستن وته د اورلمبې/لنبې ګلزار شي

ناز د حسن/عشق پرورش مومي له عشقه	هسي نه چه د خوبانو په سنګار شي

بې محنته چا راحت موندلی نه دی	د وصال خوښي د هجر په مقدار شي

عاشقانو لره واړه سعادت دی شي | که ئي سر و مال د يار تر نامې ځار

یاره! یاره! هر ځوك وايئ په جهان کښي | زه به پس له مرگه وايم چه يار يار شي

لکه ډار دا کاندي (مر)ورغومی له ګرګانو | هسي رنګ له جدايۍ نه زما ډار شي

د رحمان دا پوچ ګويي څه پکار نه ده | عاشقي په گفتار نه شي په کردار شي

٧١

تبسم مي د وګړي په روزګار شي | چه له مرګه ئي نه ويره نه ئي ډار شي

چي يې نه له خدايه ويره نه يې ډار شي

له ده وزيري د ده د وړاندي ومري | لا ئي مينه د دنيا په کار و بار شي

که ئي هر قدم د مړيو په سر لار وي شي | يو قدم هسي وا نه خلي چه په لار

د ژونديو نصيحت پرې اثر نه کا | مګر مړ ه له قبره پاځي په ګفتار شي

د اميد مزی ئي هسي رنګ دراز وي شي | چه تر خضره ورته خپل عمر بسيار

سپینه ږيره په اوږنې کښي زويه واخلي/زوی راواخلي | چه به ما لره سپاهي و منصبدار شي

د خرما زړی نهال کا ورته ګوري | چه دا سيوری دا ميوه به مي پکار شي

هر هر فصل چه ترې ريبي هوسيږ ي | چه به ګانده راته بل فصل تيار شي

لا ئي ليه تخم هم نه وي کرلی | ناکشته ور ځني طمع د خروار شي

غړوندی/ي د نازوکړيو خسيو غړي | چه سبا بيګاه به ما لره ګوهار شي

لکه وړکی کټوری غواړي له زاڼې | په دا هسي پوچ ګوئي ئې اعتبار شي

چي هرګز په عمر نه وي چيري شوي | د هغو ناشدنيو اميدوار شي

هلکانو غوندي پاس په کوټه/خونه ځغلي حصار شي — خو چي دوه قدمه اخلي نور

په زحمت د تن له مالگي هم پرهيز کا — هغه نه کا چي له نهي پرهيزگار شي

د ژوندون په تيريدوېږ نظر نه وي شي — چي دا گنج به مي له لاسه تار په تار

رحمان څه دی چه به پند و چا ته وايئ — هدايت د هر بندهٔ په کردگار شي

۷۲

چه شهيد د تورو سترگو په خنجر شي — خوشنودي ئي د سرو شونډ و په کوثر شي

چه را ياد ئي سپين رخسار دراز مژگان کړم — هغه دم مي زړه سپند سينه مجمر شي

عندليب خاطر مي الوزي په گلو — که د ترکو سنبل زلفي ئي شهپر شي

که يار سل ځله جفا را سره کاندي — زما کله په جفا د يار باور شي

د ناصح په نصيحت به منع نه شم — که هزار ځله مي ورور و برادر شي

د رقيب او زما صلح سره نشته شي — که مو چيري لاس و دست و بله بر

صبوري او قراري له ما خطا دي — تر هغه ساعته پوري چه محشر شي

تير ساعت به د هيچا په لاس کښېږ نه وځي — مگر تللي آشنا بيا په آشنا ور شي

خوبرويان به د سپوږمۍ ټوکړه را وخلي قلندر شي — که رحمان کچکول په لاس کښي

۷۳

چه غبار دا ستا د لاري په خوا ورشي شي — که په دواړو سترگو ړوند وي مبصر

تازه نوی سر پیدا کړي لکه شمعه شي | چه ئي غوڅ د ستا په مینه د زړه سر

چه کیمیا د قناعت ئي په لاس کښیوزي توانګر شي | که ګدای وي د قارون په څیر

ستا د در ګدایان واړه بادشاهان دي شي | خو چه ستا له دره ووزي در په در

تل ئي مخ وي له عالمه جار وتلی | د هغو چه ستا په مخ باندي نظر شي

که د درست جهان له حاله خبر دار وي | چه تا ووینی له واړوبې/نا خبر شي

ائینه که د جمال کړې ور څرګنده | دا ګدای رحمان به شاه سکندر شي

۷۴

که دي غم د درست جهان تر زړه چا پير شي | دلګير مه شه هسي وايه چه به تير شي

غم هغه دی هر چه خیرمه وي و چا ته هير شي | وړنبي/وړومبی واړه تر وروستیه پوري

بې له خدایه چه مدام په یوه حال وي سبر شي | بنده/سړی کله شیرشاهي شي کله

یو آدم دی چه په څو رنګه جلوه کا شي | یو رقم دی کله زورشي/و کله زیر

د دنیا چارې مدام په قرار نه وي شي | د بڼو په څنبول کي به/په بل بل پېر

په لږ عمر کښي ډير غم له کومه راغی ډير شي | خوله خپلي بې صبر په سړي

خریدار و فروشنده چه سره خوش شي و بير شي | په سودا کښي سختي نه کا تير

ښایسته په جهان ډير دي بې حسابه شي | بارې څوك به د رحمان د یار په څیر

۷۵

له دې كښه له پوزيه خو به ولاړ شې ترو بيا خداى خبر چه كوم خوا ته به لاړ شې

په ظاهر صورت خو هسي معلوميږې شې چه به خس غوندي تر پښو لاندي لتاړ

دا آسمان زمكه به وي او ته به نه يې ويجاړ شې په ودانه ودان كښي به په

د بهار د ګلو عمر مدام نه وي عندليب غوندي به پاتي په اهاړ شې

په ويلاړ ويلاړ به ځان ور پسي ورك كړې لاړ)ويلاړ شې چېري نه وي چه د تركو په (وولى

كه ليلى غواړې رحمانه دا بايده دي شې چه مجنون غوندي ساكن د كوه و كاړ

۷۶

كه د سرو زرو/زرو مېرو سر/سرى وي خو چه مړ شي اخلي نه نومړ شي نه ئي نوم په خوله ثوك

كه هيچا پړكړى نه وي په جهان كښي و اجل ته لكه خر په خټه پړ شي

راشه راشه دا ډير ناز و كبر مه كړه ياره ثو به دي دا ناز په جهان وړ شي

دا رخسار چه دي روښان تر آئينې دى عاقبت به د لحد په خاورو خړ شي

مراد خو واړه دلبر دي/دلبري ده غزا وشوه كه د سروې په ثير ثوك په قامت لوړ شي

نيك‌نامي له نيك خوي نه پيدا كيږي دغه چاره نه په سوك نه په لوړ شي

عاشقان چه پښيمانيږي هغه نه كا هغه سوك د بې هنر وي چه خپړ شي

دا خو زه له شفقته/مشقته تا ته وايم زغړ/ژغړ شي ګڼه ځان له سرنوشته په چار/چا

د هوا په نغوته مه ځه كه دانا يې د هوا ويشتلي غشي زر په ځوَړ شي

وران به نه کاندي يو حرف د خپلې برخې     که په اوښکو د چا درست جهان چقړ شي

په تدبير به د تقدير کښلي نور نه کړې     د قسمت علاج په عقل کله کړ شي

په رحمان باندي بې ياره صبر ګران دی     لکه زهر چه ديده دانسته نغړ شي!

۷۷

هغه دم چه زړه ملال شي     يو ساعت ور باندي کال شي

حيران تللی وي په فکر     فراموش ئي قيل و قال شي

نه ئي ګفت نه ئي شنود وي     په غوړ کوڼ په ژبه لال شي

نه جواب و چا ته کاندي     نه ئي غوږ د چا په سوال شي

علم عقل ځني پا خي/لاړ شي     درست صورت ئي خواب و خيال شي

په رڼو سترګو ويده/اوده وي     لکه نقش د ديوال شي

قوت ئي ويني د ځګر وي     هم دغه ئي اشتغال شي

د چشمانو له بارانه     په رخسار ئي پشکال شي

په سبب د عاشق     تير تر آل و تر عيال شي

هم ترآل و ترعياله     هم تر مال و تر منال شي

په خپل درد و په خپل غم کښي     تر عالمه فارغ بال شي

نه طاقت نه ئي مجال وي     بې طاقت و بې مجال شي

که ژوندی وي په جهان کښي     د مرده ؤ په مثال شي

په خشک کښي ماهي ګوره     هسي بې تيغه حلال شي

پاڅيدی نه شي له ځايه     په زړه غوځ په تن کهال شي

د ویشتلیو په څیر یون کا له کل خلقو په دنبال شي

لکه خس د لویې لارې تر قدم لاندې پایمال شي

خدای له غمه سړی ژغوره بیا لا بویه/ګوره چه خوشحال شي

چه د زړه ولې شي غوټې/ویني شي وچې نورژوندون ئې په اشکال شي/نوې ویني په محال شي

د باغبان سترګې کا سپیني چه تازه نخل و نهال شي

روئیدن د کښت آسان دې/ی پرورش ئې ډیر/لوی جنجال شي

ویراني په یوه دم شي ودانې/آبادي په ډیر اشکال شي

چه پلار ومري بیا لا بویه چه ئې زوی با کمال شي

څوك خبر دی له دې دوره چه په ما به پیښ څه حال شي

چه په حال کښې ئې حال نه وي څه امید په استقبال شي

د یوه ساعت له مخه خدای زده څه رنګه احوال شي

ددنیا چارې فاني دي رفت آمد یې په یرغال شي

په مثال کښې لکه سوری خوا و شا د هر دیوال شي

اعتبار/اعتماد په اوبو مه کړه چه اِستاد ئې په غربال شي

د بنو په څنبول کښې شال شړ کا شړ شال شي

که بادشاه د ولایت وي کنډولی په لاس کنګال شي

په ثواب ئې غلط مه شه په یوه ساعت وبال شي

په کمال ئې مه نازیږه په یوه ګړ زوال شي

د هاتیانو سوداګر وي بیا د ګاؤ و خر دلال شي

جوهري وي جوهر پلوري/د گوهرو	خاوري اغږي کلال شي

کلالي و گِل کاري کا	فروشنده د مات سفال/صفال شي

په هستۍ کښي ئي اشراف وي	په نيستۍ کښي ئي ارزال شي

د ځوانۍ په وقت کښي شير وي	د پيرۍ په وقت شغال شي

چه مشهور په صداقت وي	پوچ گوئي واخلي بطال شي

محتسب وي احتساب کا	کوټوالي واخلي کوټوال شي

نيکو کاره نيک افعال وي/كار وي نيك عمل كړي	بد کردار و بد افعال شي

سر نوشت د سړي خپل دی/گوره	يو عيسی وي بل دجال شي

چه نيك بخت وي نيکوئي کا	چه بدبخت وي بد سگال شي

لاس و پښې د هغه نيسه	چه خوشخوی و خوش خصال شي

په هجران (کي) نا اميد مه شه	خدای قادر دي که وصال شي

په حرامو کښي اميد کړه	گوندي مخ دي په حلال شي

کافر وباسي له کفره	په يوه ساعت ابدال شي

تور بهتر کاندي تر سپينو	په سپين مخ باندي تور خال شي

آرزومند د يوه خره/خس وي	خداوند د ملك و مال شي

چه سيالي ئي کړې نه وي	له سيالانو سره سيال شي

په ډير عمر منفصل/چي په عمر مفصل وي په ساعت کښي اتصال شي

ممکنات به منع نه کا	که ځوك سل ځله سنبال شي

چه د خدای رضا شي پيښه	رمل پاتي د رمال شي

فال به څه گورې رحمانه	خپل افعال د سړي فال شي

هر چه ستا په زنخدان کښي ئي منزل شي   لکه  خس  په تناره کښي به جلبل شي

چه څوك نوم د ستا د شونډو په خوله واخلي که ئي زهر وي په خوله کښي هم عسل شي

په هجران کښي زه/زه په هجر کي بې برگ و بې نوا یم   لکه کښت چه اوبه نه مومي شډل شي

په عاشق باندي گمان دا هسي مه کړه   چه یار زړه ور څخه یوسي تش گوگل شي

په جهان تر آشنايي خواږه څه نشته   ولي حیف دي چه هجران په کښي حنظل شي

په خپل حسن باندي مه نازېږه گله   دغه رنگ به دي په دوو ورځو بدل شي

زه رحمان بې یاره هسي شول و شل شم   لکه کب چه بې محیطه شول و شل شي
۷۹
که سل ځله هم کنار و هم بغل شي   د دنیا مئین به/د دنیا  په  مینه  واړه سره  بیل  شي

دا چه اوس په یوه کور کښي سره ناست دي   عاقبت  به ئي جدا جدا منزل شي

دا گلونه چه ئي ځاي دی په دستار کښي   همه   واړه به تر پښو لاندي غوبل شي

دا پی مخي چه ئي مخ د نمر په څیر دي   تور ویښته به ئي په مخ باندي ځنگل شي

دا شیرین شیرین شربت چه د وصال دي   د هجران په وقت  به زهر هلاهل شي

ما د یار په بیلتانه کښي دي/دی لیدلي/لیدلی که دانا د زمانې وي مبدل شي

پښه له ویرې د وصال په ځمکه/مزکه نږدي  چه خبر د جدايي په  دل دل شي

د دې هسي رنج علاج به څوك په څه کا چه نه فهم د چا رسي نه اټکل شي

که د غرونو په سر ګرځي سر ئي ټيټ وي هر چه زړه ئي د خوبانو يرغمل/په يرغل شي

د رحمان خاطر غمونو هسي زنګ کړ شی مګر جام د ميو ناب وي چه صيقل

٨٠

که د زړه په وينو رنګ د چا ګوګل شي چه بيلتون په جهان ګرځي/شته دی خو به بيل شي

که د اوښکو په درياب باندي ئې نهال کړې نيشکر به نيشکر شي نه/نل به نل شي

مشقت د سړي واړه حبطه/ابته کا/دی شي په ښوره کښي چه د ګل بوټی نهل

د دنيا ياري دوستي څه پکار نه ده شي له اوله يار و دوست وي پسې غل

که هر څو ئي و بله مهر و محبت وي نهايت سره په جنګ و په جدل شي

په مثال د دروغژنې مرغلرې شي آب وتاب ئي په دوه ورځې کي بدل

که ئي زنه دځوان په وقت کښي سيب وي شي هغه سيب ئي په پير کښي بيا حنظل

د رقيب له بده خويه به څه وايم شي ترو دا ګوره چه لا يار ور سره مل

زه رحمان په ښه په/و بد د يار پوهيږم شي کاشکي زهر په دهن د چا عسل

٧۶

هغه زړه چه خدای روښان کا جام د جم شي په داجام کي ور ښکاره تمام عالم شي

په آدم کښي د حیوان خویونه هم شته شي | بیا هاله ئي آدم بوله چه آدم

چه خویونه د چارپایایو په کښي نه وي | سړي هوښ په سړي هله مسلم شي

چه اغوستی ئي لباس وي د پاکانو | د ناپاکو چاري کاندي خو به ګرم شي

که هر څو طعام لذیذ وي مزه نه کا | چه یوه ذره نمك ئي زیات و کم شي

ښادي هر چیري د غم په اندازه وي شي | د هغو به څه ښادي وي چه بې غم

هر چه خپله رضا پاسلي و قضا ته خُرَم شي | که هر څو په ځان ناخوښ وي خوښ

عاشقي چه تر کماله ورسیږي | د خپل یار له لاسه زخم ئي مرهم شي

که په ځان باندي قدم کیږدې رحمانه ځُنه فلکه به دي لاندي تر قدم شي

۷۷

چه مجنون غوندي یو موټی استخوان شي په قوت د عاشق به پهلوان شي

عاشقانو په شکست کښي بري بیا موند ناتوان شي دلته توان د هغه رسي چه

زیړی رنگ د عاشقانو هسي مرتبه ده جهان شي چه آفتاب غوندي څرگند په درست

له چشمانو ئي باران د رحمت ووري شي زرغونه ئي په چهره باندي زعفران

له رخساره حال د زړونو معلومیږي له بهاره نیك و بد د کال عیان شي

له نکتې نه تمام علم حاصلیږي شي درست خروار له یوه مشته نمایان

پکار نه دي مخالف هزار تقریره موافق له حاله نیم کلام داستان شي

لکه مړ له کار و باره وي وتلي د هغو خاورې په سر چه غافلان شي

که دي ډیر عمر پکار دی غفلت مه کړه شي په اوده باندي سل کاله یو زمان

د غفلت بنیاد د اوښکو په موج خیژي طوفان شي یو څڅویکی خواب آلود لره

ړوند په خپله عصا پریوزي و کوهي ته خپل دلیل د کم دلیل د ځان تاوان شي

سر کشي د عاجزانو پکار نه ده هر میږی چه وزر وکاندي پښیمان شي

موم دلان به ئي له شره لمن ژغوري سنگدلان که عین لعل د بدخشان شي

چه کیمیا د قناعت ئې په لاس کښیوزي بادشاهان شي د شړ په خرقه کښي

بل پوشاك ئي پکار نه وي بې نمده هغه زړه چه آئینه غوندي روښان شي

عاشقي ده تر جمله بلاؤ زياته و مجنون ته ديو و دد واړه حيران شي

پرې به ورکا دُر بتان/کاتبان به ورکا دُر د خپلو غورو که ئي تير تر غورو شعر د رحمان شي

۸۳
آشنائي توره بلا ده آشنا مه شې جدايي به دي فنا کا فنا مه شې

درد و/دغه غم به دي د زړه ولې کا غوخې گرفتار په درد و غم د جانان/جانا مه شي

په زيړ رنگ به دي تل سرې اوښکي بهيږي د دو رنگو په خير گل د رعنا مه شې

هم په دا چه دروغژن د خداى دښمن دى و هيچا ته دروغژن په وينا مه شې

که اعلى مرتبه غواړې عاشقي ده نور همه واړه ادنى دي ادنى مه شې

خپل خربښت و هر خاروي وته قصاب دى توانايې د تن تاوان دى توانا مه شې

هميشه به سر نگون په فکر ناست يې مه شې د رحمان په څېر/هسې مشغول په ثنا

۸۴
د عاشق بې خپله ياره قرار نه شي بې طبيبه قراري د بيمار نه شي

چه په لوح محفوظ کښي کښلي(ى) ليوني(ى) وي په تعليم د معلم به هو ښيار نه شي

زوى د پلار په غيږ کښي پروت وي روح ئي لاړ شي د قضا علاج په مور و په پلار نه شي
د خپل پلار په غېږ کي پروت وي روح يې واخلي

د هغو چه خداى کمال حسن روزي کړ هيڅ نقصان ئي د منکر په انکار نه شي

درد و غم د عاشق چه ډير مشکل دى هيڅ سړى دي په دا رنځ گرفتار نه شي

زه همه عمر له خدايه دغه خواست کړم چه دي يار له خپله ياره/د يار له لاسه ويزار/ازار نه شي

يار له يار سره جفا کا هسي ډېره چي هېڅ فرق يې د اغيار او د يار نه شي

که هر څو ئي دلبري و دلجوئي کا د رحمان په ترکو هيڅ اعتبار نه شي

۸۵

د سکوت په تيغ چه ژبه بريده شي لا قلم غوندي په قال کښي دويده شي

هومره اور د عاشقيه په زړه يوسي چه لاله ئي له تربته دميده شي

خم ابرو د يار مي نقش په ليمه دي ليده شي لکه مياشت چه په لوي بحر کښي

هميشه ئي د خپل يار په لوري دَو وي نهايت چه په دا دَو کښي رسيده شي

څه حاجت دی چه زه يار و چا ته ستايم شي کار همه د خپلو سترګو په ديده

کله وي چه يو د بل په ويل ځوليري مګر صافه د چا خپله عقيده شي

خود ځرګند وي لکه صبح په جهان کښي دريده شي هر ګريوان چه په يار کښي

ابروئي د عاشق هلته ځان ځرګند کا شي چه ئي نم د زړه له سترګو چکيده

د آه غشي(ی) ئي په زمکه کله لګي هر قامت چه کمان طوره خميده شي

بې مطلوبه ئي هيڅ فهم په چا نه وي فهميده شي هر طالب چه په طلب کښي

هر چه زړه په مهرويانو باندي بايلي بې ديناره و بې درمه خريده شي

ما د يار په ځير بل مخ نه دی ليدلی مګر پس چه له نن ورځ آفريده شي

یا به شهد یا به قند یا به نبات وي | هر کلام چه له رحمانه شنیده شي
---|---

۸۶

| | |
|---|---|
| چه سړی له بله بد وایئ بد ګوئ شي | لا تر بل پخوا روان د ده بد بوی شي |
| مرده شوئ چه هوس کا د بل و مرگ ته شي | بل هم پس دده له مرگه مرده شوی |
| دوست د ښمن د سړي واړه خپل عمل دی شي | هم په دا مقدار ئي اجر موي بموی |
| هره ونه چه کږه په یوه لور وي | عاقبت ئي پریواته په هغه سوی شي |
| په لوی کښي نور څه نشته بې زواله شي | هلکان د هلکتوب په سبب لوی/پوی |
| د اوبو اصل له خاورو پیدا کیږي | خاکساري د خاکسارانو(په) آبروی شي |
| همره زیان له خوگه خرسه نه رسیږي | لکه څوك په آدمیانو کښي بد خوی شي |
| سړي هوښ چه د سړي له تنه پاڅي | د سړیو په جامه کښي خربشوی شي |
| و هغو وته چه خدای پخپله وښود شي | څه حاجت ئي د رحمان په گفتگوی |

۸۷

| | |
|---|---|
| وقت د عیش و طرب تیر شه خزان راغی | ځانکندن د بلبانو په ځان راغی |
| دلداري مي ترې امید وه باري څه کړم | هغه یار د دلبرانو په شان راغی |
| سود سودا د عاشق که نفع مند وای نقصان راغی | ما هیڅ سود په کښي بیا نه موند/ونه لید |
| تمام عمر که وصال ؤ همره نه ؤ! | لکه یو زمان د ښکلیو هجران راغی |
| آشنائي مي په هوس وه خو چه بیل شوم ارمان راغی | دواړه لاس مي و بله ومښو |
| ګوی زما د زړه ئي یووړ په چوګان کښي | بیا د ناز په نیلي سور په جولان راغی |

غنچه لب به/چي په خندا کاندي/نه کا پریشانه راغی | په شیبو زما د اوښکو باران

د میرزا د ارزاني دعوی به پرې کا | قدر دان د شاعرانو رحمان راغی

۸۸

په اول کي تا د عشق وهلې لافي خلافې | هغه لافي دي اوس ولي کړې

اوس خپل سر ورته محکم نیولی اوسه کړې خلافې | چي د غم مصی دي ځان ته

سپین چلتار په یوه ټکي بد نمای شي | د ارزالو چاري مه کړه که اشرافې

بې تمیز خو معرفت کولای نشي صرافې | ته کره او کوټ معلوم کړه که

ځان دي ولي بې حیا کړ بې حجابه | چي پټ کړی دي د میني په غلافې

که دا هسي لویي غواړې لویی داده | که په اصل کي منصور غوندي ندافي

ددوران له فسادونو امان غواړه | که په عقل د خپل فکر موشګافې

د تقصیر سبب یې کوم دی رامعلوم کړه انصافې | مئین وژنې بې له جرمه نا

کوم صفت به زه رحمان د ستا بیان کړم اوصافې | په کامل صفت موصوف په کل

۸۹

یا دا ستا چشم و ابرو وینم په خواب کي شوي په محراب کي | یا مستان دي اوده/ویده

یا په جام کي ستا د مخ عکس لیده شي حباب کي | یا خو تندر تجلی که/کا په

یا تر خط لاندي غوږ ستا دخولې/خولو دي په شهاب کي | یا کوکب دی را ډوب/غرق شوی

یا دي زلفي په مخ دواړه را خورې کړې کنجلکي/کجک شو د اور په تاب کي | یا سنبل دی

یا دي زلفو په مخ توره تاریکي کړه یا خو تندر ځان څرګند کړ په آفتاب کي

یا دا ستا مژګان/پیزوان زما په خاطر/ځګر خښ دی یا سیخونه دي پټ شوي/پییلي په کباب کي

یا خو ستا له/په غمه/غم کي غرق زما صورت دی یا خسنی دی جاروزي په ګرداب کي

ته ددې رحمان خطا کړه ور معافه کي د اوترو چاره نه وي په حساب

چي د یار کاته یې ووزي بیا د سترګو حساب/حباب کي د رحمان به څه عزت وي په

چي د یار دمخ کاته له میانه ووزي
۹۰

ستا د میني ګوهر نشته په هر آب کښي مګر بیا موند شي د اوښکو په دریاب کښي

که ته وینې زما پټې څښې دلبره کښي رنګ د لبو دي ګواهي لي/دی په دا باب

په هر ځاي چه ستا د لبو نوم آغاز شي د لاله و باران اوري په حباب کښي

له خسته زړونو به څه دلستاني کا د خراج ګنجایش نشته په خراب کښي

زه حیران د ستا د وروځو په تور خال یم کښي کافر څه شکل سجده کا په محراب

ګل له ډیري باریکۍ په شبنم خور شي! کښي نازک زړونه/نازکان زړه بدوي په صاف څواب

د بهار په ګلو اوري بارانونه کښي د څڅویکي طاقت نشته په حباب

د رحمان غلطي وبخښه اې خدایه حساب کښي د اوترو چاري نه وي په

۹۱

زړه مي بايلو ستا په مينه محبت كښي عاشقي دي زهر راكړه په شربت كښي

لار زما و يار ته مه تړه ناصحه ما موندلى دى دا يار په ډير محنت كښي

كه صورت د هغې مستې در/را خرگند شي عقل وهوش به دي هيڅ نه وي په صورت كښي

كه د عشق تر كمر پريوزې/لگې سر/غاښ به بايلې ته چه ما ته غاښ چيچې په نصيحت كښي

زه توبه په هغه تير عمر وكاږم چه صرف شوى دى بې ياره په غفلت كښي

د آشنا د ميني پت به مي/را مات نه شي كه مي سر له تنه درومي په دا پت كښي

له ادبه ئي و مخ ته كتى نه شم خداى را پېښه جدائي كړه په وصلت كښي

په قيامت كه څوك له نيته پوښتيده شي زه د يار د كوڅې خاوري يم په نيت كښي

د درگاه په خاك نشينو يې تل سخ وي/سختي نه وي دغمونو دخل نشته په جنت كښي

لكه زه چه ستا/يې د در په خاورو خوښ يم خوښ به نه وي سلطانان په سلطنت كښي

د درگاه په خاک نشينو به يې تل سخ وي د غمونو دخل نه وي په جنت كي

د دنيا له دولتونو بې پروا يم زه رحمان د عاشقيه په دولت كښي

۹۲

مغرور مه اوسه د عشق په کار و بار کښي هر خسنړي تېره تيغ وي/دی په دا لار کښي

دا سور گل به دي دستار په وينو سور کا چه دي ايښی زماني دی په دستار کښي

مخ د ترکو چه تر آب حيات صاف دی زه دې آب حيات سوی يم په نار کښي

چه اوسپنيزه/د اوسپنو آيينه پرې اوبه کيږي ترو زما دهستا څه دي/هستي يې څه ده په ديدار کښي

په هر وار چه ئي زه سترگو ته نظر کړم لاس مي وللي دي له ځانه په هر وار کښي

ياره ته چه له ما صبر و قرار غواړې عاشق کله وي په صبر و په قرار کښي

که مي سر و مال د ستا په مينه درومي زه تر سر و ماله تير يم په دا کار کښي

هېڅ صرفه مه کړه د زړونو آزار اخله که د چا سود روزي شوی په آزار کښي

عشق د عقل په کوڅه استوگه نه کا چا موندلی نه دی يار په دا ديار کښي

ستا له دره له درباره/دياره به وا نه وړم څو و نه مرم ستا په در و په ديار/دربار کښي

کمبختان د يار په وصل کښ مهجور وي/دي د وچ ډکي بهره نه وي په بهار کښي

مفلسانو لره عين کوهستان دی که همه عمر ئي کور وي په بازار کښي

و هغو چي خدای حقبينې سترگې ورکړې/کي د يوسف تجلیويني په ديوال کښي

و عيب جن/جوي ته واړه عيب څرگنديږي ښايسته که ځان يوسف کا په سنگار کښي

چه هنردعاشق ئي خدای نصيب کړو        بې هنره نور څه نه ويني په يار کښي

دا داغونه د خپل زړه ور لره بس دي        څه حاجت دی د رحمان په لاله زا ر کښي

۹۳

مدام ناست یم وچ ګوګل سترګي په نم کښني عشق را وښود بحر و بر په خپل حرم کښني

ما چه زخم ستا د توري په خوله ښکل/کښل کړو نور مي دا لذت بیا نه موند په مرهم کښني

خوار/خود مجنون چه سر په پښو د لیلی کیښود سر فراز شه په عرب و په عجم کښني

زورآور مدام غالب وي په کم زوري زه له نوره غمه خلاص یم ستا په غم کښني

لکه زه چه مستغرق یم ستا په غم کښ بل به نه وي په جمله بني آدم کښني

لکه مږی د ژوندیو تر میان پروت وي هسي بیل یم له عالمه په عالم کښني

هیڅ صحت مي د دم ګرو په دم نه شي هم په دا چه زما دم دی ستا په دم کښني

نه مي بې تا تګ و پو(ی) نه جست و جو شته مراد مي ته یې په هر دم په هر قدم کښني

که نصیب مي شي کوغالی ستا د سپیو وبه نه کړم نور نظر په جام د جم کښني

زړه مي هسي ستا په زلفویسې ورك شه لکه غوټه د چا پریوزي په تور تم کښني

سره په وینو د سرو ګلو په څیر زانګي هزار زړونه ستا د زلفو په هر خم کښني

زه رحمان کناره خوښ یم له عالمه باري ستا سترګو رسوا کړم په عالم کښني

۹۴

هسي بې له یاره زه/بې یاره خفه یم په جهان کښني چه مي نه شي ځاي په مځکه په آسمان کښني

سره گلونه د چمن راته سور اور شي کښي چه قدم بې یاره کیږدم په بوستان

چه ئي مړ نه یم له ډیري بې نیازیه کښي حیرانیږم د ناتوان صورت په توان

که هر څو فکر له ځانه سره وکړم کښي هیڅ د صبر طاقت نه وینم په ځان

هیڅ ساتنه د سر کښ خاطر را نه شي ځان کښي هیڅ د صبر طاقت نه وینم په

تر هغه به بل نادان په جهان نه وي کښي څوك ساتلی شي ښځري په ګریوان

که ئي سل ځله په ځار و قربان بولم کښي غوږ رانه باسي په ځار و په قربان

هسي رنګ زما په ډیره ژړا خاندي کښي لکه ګل د پسرلي خاندي په باران

جوهري شي در و لعل کاندي برسېره/ځیره کښي چه مي کښېني د دوو سترګو په دکان

چه مي هیچري په خوا په خاطر نه ووا کښي زمانې راته څرګند کړه په زمان

چه په وصل کښي ئي اوښکي نه وچیږي هجران کښي ترو به حال د رحمان څه وي په

۹۵

د بلبل له حاله زده کړه په خزان کښي بوستان کښي بیا د ګلو تماشا کړه په

څو دي تیر تلخائي تر ستوني نه شي کښي شیریني به خوند در نه کا په دهان

ما په هجر کښي لذت د وصال بیا موند له یوسفه ملاقي شوم په زندان کښي

لکه متن له معنی معنی له متنه کښي | يار هم هسي دی زما په دل و جان

عاشقي آسانه مه ګڼه خبر شه کښي | سر بازي ده هر نفس په دا ميدان

د ناتوان له ناتوانيه وويرېږه کښي | که هزار ځله توانا يې په خپل ځان

هم هغه به پس له مرګه آزارېږي | هر چه بل آزاروي په دا جهان کښي

په رحمان باندي بې ياره هسي حال دی کښي | لکه حال زندانيانو په زندان

۹۶

زړه مي ډوبډوب کېږي ستادغم په غلبو/غلغلو/غلبلو کښي هسي لکه څوك چه مستغرق شي په اوبو کښي

ستا د عشق له موجه هيڅ لوري وتی نشم دواړه لاس مي پريواته د عشق په لانبو کښي

سل توبې مي ماتي کړې وا نه وښتم له عشقه څه ويسا مي نوره پاتي نه شوه په توبو کښي

ته چه له ما درومې دا د اوښکو باران ګوره رخ د سفر هيڅ نه دی په دا ګڼو شيبو کښي

نه يوه سپوږمۍ نه په آسمان کښ هزار ستوري بې تا به څوك څه کاندي د خلقو په جنبو کښي

عشق و عقل دواړه سره ضد دي که پوهيږې کله کړي آرام د اور بڅري په پنبو/لمبو کښي

هر څوك چه د عشق په آتش ځان سيزي رحمانه خدای ابراهيم غوندي نګاه کا په لمبو/لنبو کښي

۹۷

هسي خوښ يم ستا د در په خاکستارۍ کښي لکه خوښ وي سرداران په سردارۍ کښي

عاشقي كه نورو خلقو ته خواري ده كښي
ما  موندلى دى دولت په دا خوار

و بيمار ته كه ناخوښ  وايئ  وګړي كښي
خوښ يم زه د ستا د عشق په بيمار

د خپل بام و دروازې/روزينو وته نظر كړه كښي
هسي سترګي  دي زما  په بيدار

يار د يار له  سترګو  اوښكي  پاكيزه كا يار كښي
تا  جاري كړې  زما اوښكي په

ما له  ډيري ناچار  و يار ته شا كړه
سړى عذر دى په ډيره ناچار كښي

غم به هيڅ يوه هوښيار خوښ كړى نه واى هوښيار كښي
ما خوښ كړى دى ستا غم په

د رحمان اوښكي به څه رنګ په قرار وي ٩٨
چا ليدلى دى درياب په قرار كښي

ښايسته مخ وي/سپين مخونه تور كودى شي په پير كښي
سم قامت وي كوږ لرګى شي په پير كښي

لكه شمع د سحر آفتاب د ژمي كښي
هم بې تاب و هم زيړى شي په پير

يو طرف ته ئي سر ريږدي بل خوا درومي كښي
خپل صورت تمام پردى شي په پير

د مړده ۀ په حساب وي غزا وشوه كښي
كه خرګند ليده ژوندى شي په پير

مړ لا ښه دى پس له مرګه بيا ژوندى شي كښي
نشته دا چه څوك زلمى شي په پير

كه څه وخوري لكه زهر نه هضميږي پير كښي
نه څه ښښى نه څه خوړى شي په

دا ځواني ده چه څه اورې يا څه وينې
نه ليده نه اوريدى شي په پير كښي

اې رحمانه پيري هسي عاجزي ده پيرۍ کښي
که رستم وي زړه پرې سوی شي په

۹۹

چه وصال د خپل جانان مي دی موندلی
گنج د درو د مرجان مي دی موندلی

همره طمع مي له خپله بخته نه وه
نه پوهيرم چه څه شان مي دی موندلی

که په ډير مشقت لاس لره خدای راوست
زه خو وايم چه آسان مي دی موندلی

چه مي يو نفس وصال ور سره وشه
واړه اجر د هجران مي دی موندلی

څه عجب دی که تمام جهان زما شي
چه بادشاه د درست جهان مي دی موندلی

زه رحمان په خپل اشعار شکر گذار يم
چه دا هسي رنگ ديوان مي دی موندلی

۱۰۰

ماچي سترگې و گلرخ ته واړولې
په هغو سترگو مې ويني وژړلې

د عمل جزا يې بيا موندهٔ برحقه
دا دستور دی چې کرې هغه اخلې

تر غمزويې يو په سله زړه قاتل دی
تل چړې تورې په کاڼې تېرولې

خودکرده به څه تاوان له چانه غواړي
چي يې غوځې په خپل تيغ کړې سپينې

مادا مرگ داستا په مينه کي هاله ليد
چي گدای دبادشاهۍ لافې وهلې

له خوبانو به څوک څرنگ وفا غواړي
سروې کله کشمشي مېوې نيولې

په دربار يې سنڼاسي شه ورته کېنه
تار په تار د سر ويښته ايرې مښلی

که دفتر د خپل قسمت دچا په لاس وای
بدې برخې به چا کله قبلولې

چې نيکې يې ورکوله و نېکانو
دې بدانو څه بدي نه وه غوښتلې

څوک له خاورو ايرو پاڅوې تخت ورکړې څوک له تخته د ايرو په ډيران ولې

ستا چې نيت د آشنايئ نه ۇ صنمه د رحمان سترګې دي ولې نه ګنډلې

د ازل په ورځ د برخو جواري وه اې رحمانه چا بايلودې چا ګټلې

**فی**

١

يوځل ولېدای د يار پرېشانې زلفې په عارض باندې حلقه پېچانې زلفې

که تورتم لرې ظاهر سياهي د زلفو حقيقت لرې سفېدې روښانې زلفې

دا قدرت الهي دی راشه ګوره ددانا د ګردن طوق نادانې زلفې

هم په ځبر يې د خپل ځان په زړه حيران کړم زلفې په اورو د يار پرتې حېرانې

په شميم د خوشبويې زه خوشبو شوم زلفې خدای دي نه کا په خپل داد پښېمانې

په کوم لورې به زه سر ترېنه وکاږم و ګردن ته مې پرتې رېسمانې زلفې

ځکه ژاړم له دوو سترګو اوښکې وينې چې رحمان ويني د يار خندانې زلفې

٢

بد لوې په دنيا دين و ايمان ولې؟ نه پوهيږې په خپل سود و په زيان ولې؟

هميشه په ځای د شکر شکايت کړې منکريږې په عطا د سبحان ولې؟

در بخښلی خدای د هرې چارې توان دی بولې ناتوان ولې؟ په ډير توان کښې خپسر/خپلسر

مدام اوښکې تويوې د رزق له غمه دُر ګوهر په بها پلورې ارزان ولې؟

چه په هر بيګاه سامان د هر سبا کړې سامان ولې؟ کور و کر شوې د محشر په

هيڅ ګياه له ځايه نه خوځي نم مومي ولې؟ ته د رزق په طلب مرې جهان

چه پخوا تر  قضا خپله رضا غواړې		بيهوده په لوټو ولې آسمان ولي؟

په ژوند ومره چه د مرگ له غمه خلاص شې آسان کار دي کړو په ځان باندي گران ولي؟

غيرې ميني دي په زړه  باندي  انبار  کړې		په کعبه کښي نبناسې بتان ولي؟

زړه  د  نفس  په  پيرو  در  څخه  لاړ  شه  د خبيث په لاس دي ورکړ قران ولي؟

چه يوسف د حبشي په بها مومې		د مطلوب په بها نه ښندې ځان ولي؟

بد په/له بدوپښيماني کاندي رحمانه		ته  په  خپلو  بدو  نه  شوې  پښيمان ولي؟

٣

په نور څه پسي بې خدايه ژاړې ولي؟		د چارپای په خير بې ځايه ناړې ولي؟

چي روټ ميده کوې په شخوند خو جوړ يې		ترو خبرې کوې لواړې لواړې ولي؟

ته دا خپل کلام ميده په دا خپل شخوند کړه تا داړلو ته تيرې کړې داړې ولي؟

هغه کار چه دي په نرم ويل کيږي		بيهوده په بيرته نولې لاړې ولي؟

نيك له نيکو بد له بدو مناسب دي		نيك و بد وبله/سره په بله نغاړې ولي؟

يو قدم د  خدای په لور ايښودی  نه شې		تمامي عمر په بيرته/پراته لاړې ولي؟

تل دي طوق د تعلق په  غاړه  کښيوست		وکښای نه شې دغه طوق له غاړې ولي؟

چه په ورځ د شيخ  لافي  کړې  رحمانه		په شپه مى  له مى فروشه غواړې ولي؟

۴

ته چه خپله بې عقلي هوښياري بولې		کاشکي بيا مومې د غوښتو په نرخ شولې

عشق يو داد دی په عاشق باندي له خدايه		هسي نه دی چه ئي پيرې يا ئي پلورې

زليخا غوندي به بله شيدا نه وي		كه د مصر مستورې شي واړه ټولې

هغه بحر ځه په بحر حساب نه دی		چه اوبه ئي خاك آلودي وي خټولې

له هغو سره به څه فكر د يار وي		چه په غم وي د كاله يا د كهولې

عاشقي څه د نغري په غاړه نه شي		ځو په يار پسي وانه خلې ځلي زولې

د وصال په نعمتونو غره مه شه		جدايي ئي خلقې كړي/كړلي په زړه ځمولې

دُر ګوهر په تله نه دي چا تللي		د رحمان شعر ګوهر دی څه ئي تولې

۵

هسي ډوب يم ستا د غم په درياب تللی		چه ماهي غوندي بې تيغه يم كوټلی

ما ليدلې چه ليده دي وه را كښلې		تا د ورځو په ليندو يم زه ويشتلی/را كښلی

په خپل ځان مي تر هغه پوري نظر ؤه		ځو مي ته په نظر نه وې كښيوتلی

اوس مي ستا په مينه ځان و جهان هير شه		د سيلاب په مخ كښي لاړم لكه خلی

عاشقي به ئي د باد په مخ بېنه كا		كه چا/ئي ځان وي كوه قاف غوندي نيولی

چه د عشق له بحره روغ سلامت ووزی		زه ئي نن ګڼم له موره زېږېدلی

هر چه واوړي په بلا د تورو زلفو		هغه بيا تر كوره نه دی ورغلی

چه له غرونو پريوتلی وي بيا پاځي		پاځيدای نه شي له/د زړونو پريوتلی

چه د اور لمبو/لنبو وهلی وي بيا روغ شي		نه رغيږي د آزار/هجران لنبو وهلی

زه رحمان ئي هر دم وينم ستا په غم کښي که خپل مرگ په سترگو نه دی چا ليدلی

زه د ستا له غمه ژاړم واړه ويني واړې وينې واړه وينې واړه وينې

خود مي وينې چه په تش کاته دي مرمه لا خنجر په کاڼي مرې دل سنگينې

هر زمان مي په حضور د سترگو وژنې لا يقين دي د زړه نه شي بې يقينې

عالم ستا په مينه ژوي نه پوهيږم زه په څه سبب وژلی يم ستا مينې

ډير عالم به نمرې/نوري رنگ کا معلوميږي تا چه هسي جامې واغوستې رنگينې!

پښی ئي نه وي چه و بله خوا ته درومي هسي سکڼې په غمزه د عاشق سپينې

که صورت مي پر بله پوري معلوميږي زړه مي ستا له غمه چاود دی نازنينې

هغه ښوك دی چه تر تا به بهترين وي اي تر واړو مهرويانو بهترينې

چه دي زلفې د رحمان په زړه وريځ کړې تر بڼو ئي څکه څاڅي اوښکې وينې

٨

خدای دي وژغوره له هرې پريشان اي زما د کور و کلي ودان

عاشقي چه ما گڼله دانائ وه! اوس خبر شوم له دې خپلې نادان

تر ورځ تيرې اوبه بيرته نه جار ووزي څه پکار دی پوچ بې ځايه پښيمان

وداني په يوه دم کښې شي ويرانه مرد هغه چه کړي د ورانې ودان

لکه باد چه ځان وهي له کوهه دشته زه په تا پسي کوم سرگردان

دا خو زه د ستا د غم سره لوڅيږم ښوك له ديوه سره کړي پهلوان

چه په آب و په آتش په خاك و باد وي څه اميد دی په هغه/هغې زندگان

ته چه دا رنگي اوږدې وعدې کړې    کشکي راکړې و ما خط د امانۍ

زه او ته که هغه وقت واى چا به نه واى    د مجنون او د ليلى قصه خوانۍ

زما ستا و ننداړو ته به حېران وو    که ژوندي واى آدم خان او درخانۍ

و هر چا وته چه وايم حېرانيږي    څه به وايم د رحمان له حېرانۍ

که يې هر زمان په آب زمزم وينځم    بي مئينه مي په زړه باندي غبار وي

څو يې سل خاره خښ نه شي په ټټر کي وي    کله وي چي د بلبل و ګل ته لار

٩

هر چه کښت ئي په باران و په سيلاب وي    د هغو عمر به واړه په عذاب وي

هغه ملك چه په کښي سيند و رود بار نه وي    دهقانان به ئي همه خانه خراب وي

و آسمان ته به ئي سترګې وي ختلې    د باران له انتظاره به بې خواب وي

لکه څوك چه کړَوي ئي په کړَهۍ کښي    د هغه ماهي په طور به کباب وي

لا به کله بارانونه پرې نزول شي    چه نخيل او زراعت به ئي سيراب وي

هميشه له خدايه خواست د اوبو کاندي مستجاب وي    که ئي چيري خواست په عمر

لکه تل چه ئي په زوړ د اوبو غوړ وي وي    همره غوړ ئي نه په چنګ نه په رباب

که همه عمر با ران ور باندي ووري وي    لا ګرمي ئي په صورت کښي د آفتاب

د ګرمۍ او د خشکۍ له دهشته وي    د آفتاب په خير ګمان ئي په ماهتاب

د اوبو له ډيرې ډيرې قيمتۍ نه    لرګي لوښي ئي مردار په منجلاب وي

فرق د پاکو د ناپاکو اوبو نه کړې    که اوبه ئي ګډې وډې په پيشاب وي

| | |
|---|---|
| د اوبو په غلا چه ور شي نه جار ووزي | که ساکن د خانقاه او د محراب وي |
| د اوبو په ويش چه ورشي انصاف نه کا وي | که په لاس ئي ورقونه د کتاب |
| د اوبو ثواب ئي نه کيږي له لاسه وي | که په ګوټ اوبو ئي عين د حج ثواب |
| د باران اميد ئي نه کيږي له خدايه سحاب وي | که ئي شپه و ورځ په سر باندي |
| پليتي به ئي له تنه څه رنګ درومي | چه اوبه په کښي نايابې تر ګلاب وي |
| چي د نوکو وچولو په ځاى ورشي | تر تنځري ځان بتر کا که عقاب وي |
| هيڅ ئي مه پوښته له غسله له اودسه وي | چه يو څاڅکى پرې ګوهر غوندي ناياب |
| په سبب د ډيره ډيره تيممه | هميشه ئي سپيره ږيره په تراب وي |
| د للمي سړي په مخ کي وي آب چيري وي | هغه خلق چه بې آب وي خو بې آب |
| په آب کښي لا هم وي خونه ويرانه | هغه کلى چه د بل کلي پايئناب وي |
| يو به نه سي هيڅ برى له سري/ى ورخه وي | هغه دم ئي په خپل ځان باندي عتاب |
| سم حساب له عزيزانو کله مومي ارباب وي | پايئناب سړى که زوى هم د |
| نه طاقت د بد ويل لري نه صبر | تل تر تله ئي د بل لاندي حساب وي |
| نه ئي مرګ نه ئي قتنه له لاسه کيږي وي | لکه مار په ملا وهلى پيچ و تاب |
| چه ئي زيست يا ئي روزګار په تحمل شي وي | لاس تړلى د خپل شرم به طناب |

روزګار په کاروي تحمل کا

که یوه بده وینا ئي له خولې ووزي همیشه ئي له بدیه اجتناب وي

هسي شان/یو هغه سړی تیری وربانديي وکړي چه په عمر نه د سوال نه د (جو)ځواب وي

همسایه وي/ئي چریکار د/و پښتانه شي او په اصل به موچي یا به قصاب وي

ملایم ویل اثر ور باندي نه کړي چه په زړه کښي ئي نه شرم نه حجاب وي

لکه دیو وي د سړیو په صورت شي ته ګمان کړې چه سړی وي/دی دی دواب وي

په هیڅ رنګ له بده خویه نه جار ووزي هسي مست د جاهلیه په شراب وي

چه اشراف د هسي خرسو/ښو په لاس کښیوزي نو/ترو خلاصی به ئي له خونه په کوم باب وي

هسي رزق دي خدای هیچا لره ور (مه)نه کا که به رزق د چا په هسي رنګ اسباب وي

تر دا هسي زمیندارو هغه ښه دی چه نوکر د یوه تور کافر کلاب وي

نوکري د یوه سپي ور لره ښه ده هغه پریږده چه لا نوم ئي د نواب وي

د خشک له غمه قوم د رحمان خوښ دی که رفتن ئي له جهانه په شتاب وي

۱۰

تل دي ستا د خواب آلودو سترګو خواب وي چه فتنه/فتنې په خواب وده/اودې شي ډیر ثواب وي

لکه مې چه په مینا کښي تجلي کا نور د حسن په حجاب کښي بې حجاب وي

ته چه ما ته لولوې پټ د صبر زه هم ډیر په دا راضي یم که مي تاب وي

زه په دا سبب په ترکو پسي ژاړم چه ژړا د عاشقانو د مخ آب وي

که نادان وي هم دا همره خو پوهيږي ثوك چه نه ژاړي په يار پسی كذاب وي

د عاشق سترګې په دا سبب شوې پاكي چه مدام د جوې په سر لكه حباب وي

له خالي خونې به څه وړي چه څه نه وي كه ختلی د حباب په سر سيلاب وي

هم په دا ئي د نغمې اثر پيدا شه چه په تشه ګيډه صبر د رباب وي

د حريص له خپله نقده بهره نشته لكه مار د ګنج د پاسه پيچ و تاب وي

كاملان تعلقات د دنيا نه كا لكه پاڼې د خزان پښه په ركاب وي

غفلت هيڅ عجايب/مناسب نه دی په دنيا كښي ساكنان د خرابات/دهر كل واړه خراب وي

چه ښادي غواړي بې شماره بې حسابه په رحمان به د غمونو څه حساب وي

١١

د هغو چه وبله/(څ)ځبله مهر و محبت وي په هستۍ او په نيستۍ كښي فراغت وي

عاشقي ده تر هغه مقام پهور ته چه د چا مقام په رنځ يا/و په راحت وي

څه د اور په لنبو/لمبو سوی څه د عشق/په واورو واړه عشق دی كه هجران وي كه وصلت وي

چه مطلب و مدعا د سړي خدای شي ناست ولاړ ئي همه واړه عبادت وي

كه په دوه قدمه ومري هم حاجي شي چا چه كړی د مكې په لوري نيت وي

هغه ثوك چه پيروي د اوليا كا دا ئي واړه په معنا كښي ولايت وي

| | |
|---|---|
| که د زرو په تخت کښېني غزا وشوه | وفهیم وته کم فهمه بې عزت وي |
| خاوري زر په سرِي واړه برابر شي | هغه دم چه له جهانه په رحلت وي |
| د دانا او د نادان تر میان یو حد دی | هوښیاري تر حده پههورته حماقت وي |
| تجاوز له خپله حده پکار نه دی وي | د هر چا په خپله خونه کښي حرمت |
| نور عالم که د دنیا غمونه کاندي ۱۲ | د رحمان سره دي غم د آخرت وي |
| د هغې بنا چه نوم محنت آباد وي چا ښاد وي | ترو خاطر به په کښي خرنګ/ختګه د |
| په خواړه او په ښو کله ویني نیسي وي | هر مرغه چه په قفس کښي د صیاد |
| د رنځور په خوله کښي کله مزه کاندي وي | که سل رنګه نعمتونه ئي معتاد |
| پاي بسته وو لره هر چرته/چېري زندان وي آزاد وي | هغه هر چرته/چېري آزاد دی/وي چه |
| عشق تغییر او تبدیل نه لري یکرنګ دي وي | د آشنا له لاسه داد وي که بیداد |
| د ښاد نښه هغه وي په جهان کښي | چه په یار پسي بې بیخه و بې بنیاد وي |
| بودني هغه باله شي په معنا کښي نابوده اعتقاد وي | چه د تن په نابود یی/دنیا ئي په |
| نقصاني وي/دي د دنیا عمارتونه د فولاد وي | که ترې لاندې سل ستونه/ئي سل ستني |
| زندګي که څوك پوهیږي حضور دم دی | آینده و رفته کله د چا یاد وي |
| دا دنیا لکه سیلاب هسي بهیږي وي | نه ئې چا څخه/ځني استوګنه نه اِستاد |

چه کامله اراده لري په زړه کښي د مرشد له اشارته بې ارشاد وي

و هغو ته چه خدای خود پخپله وښود څه حاجت ئي په ښوونه د استاد وي

چي کامله اراده لري په زړه کي د مرشد له اشارته بې ارشاد وي

ډیر یاران ورځخه بیل شو هیڅ ګرم نه دی که رحمان له جدایۍ نه په فریاد وي

۱۳

په دنیا کښي که هر څو و بله پیوند وي پس له مرګه به ئي درست صورت بند بند وي

زه به وخورم په دا باب هزار قسمه که باور دي په قسم و په سوګند وي

یا به وړاندي تر تا درومي یا د/به وروستو که دي ورور که دي عزیز که دي فرزند وي

زمانه به ئي تر پښو لاندي پايمال کا که په قطع تر اسمانه سربلند/آسمان پوري بلند وي

هم ئي هسي پیمانه ګڼه په خاورو! که دی/ئي ډکه خوله تمام عمر په قند وي

هر چه کاندي آزادي په دا جهان کښي پس له مرګه به همه واړه په بند وي

هر چه غاړه ئي و حق ته ایښې نه وي همیشه به ئي په غاړه کښي کمند وي

دا چه زه و تا ته وایمه که خدای کا په آیت ویه حدیث کښي به څرګند وي

ته چه نه کوې باور په آیاتونو ترو زما ویل به څه در لره پند وي

ناپسند به د منکر په انکار نه شي وي هر کلام چه دلپذیر و دل پسند

خدایه ګنج د قناعت و رحمان ورکړې چه بې ملکه بې حشمته دولتمند وي

۱۴

که د درستې دنیا غم مي په سر بار وي یار وي واړه سهل د ی که یار را سره

هزار واره به ئي د يار تر نامه ځار کړم هزار وي | که په قطع مي دا يو صورت

هغه نه دی په شمار د عاشقانو | چه د خپل ټټر داغونه ئي په شمار وي

مشکل کار د عاشق چه خدای پيدا کړ کار وي | کله بل په جهان هسي مشکل

څو ئي‌اوښکې په مخ لارې روغې نه کا | د هغو و معشوقو ته کله لار وي

ته چه گل زما د يار په شکل غواړې | کله دا رنگه گلونه په گلزار وي

نه مونده شي به بازار کښي نه په ښهر وی | هغه رخت چه د خوبانو په بازار

زه د يار په ځير مخ نه وينم په سترگو | که په هره خوا خوبان هزار هزار وي

د عاشق نظر په ډير و په لږ نه وي | که ديدن د يار په لږ که په بسيار وي

شته هزار هزار خوبان ولي سوگند دی | که زما د يار په ځير به د چا يار وي

مرگ له هيچا سره وار نه کا رحمانه وار وي | يار به ځان تر يار وړنبي کا که په/ئي

۱۵

له هغو سره به څه فکر د يار وي | چه ياران ئي په هر لور هزار هزار وي

په آشنا پسې ويشتلي هم هغه وي وي | چه له نوري آشنائ ئي استغفار

صبوري او قراري دي په ما زوم/زور شي | که بې تا به مي يا صبر يا قرار وي

هر ژوندون د يار په وصل ښايسته وي وي | بې مئينه که ژوندون وي څه په کار

که د يار له لاسه اور په يار بليږي | هغه اور و عاشقانو ته گلزار وي

په يار کښي آزار نشته خدای دي نه کا وي | که ذره به زما زړه له تا آزار

و هغو ته عاشق نه/مه ویلی بویه | چه ئي فکر یا د سر یا د دستار وي
ځاي ئي اور شي چه زنار ئي شي په غاړه | ولي نه چه ستا د زلفو زنار دار وي
ستا د زلفو زنار دار که په اور سوځي وي | دغه اور به هم ربتیا ستا د رخسار
هغه جونه به لیلی غوندي رسوا شي وي | چه رحمان غوندي مجنون ئي په دیار

۱۶

که د ستا د خاطر مینه په اغیار وي | ستا دپاره دي اغیار هم زما یار وي
هر سړی چه په یو مخ باندي مئین شي/وي | له یوه مخه ئي سل مخه پکار وي
هر چه کاندي نوکري د پادشاهانو | خواه مخواه به د دربانو منت بار وي
زه/څه به ستا له رقیبانو څه/زه ماڼه کړم خار وي | دا دستور دی چه له ګله سره
څو سل خاره ئي خښ نه شي په ښتر کي وي | کله وي چه د بلبل و ګل ته لار
سجاده به د ساقي د لارې فرش کا وي | هر صوفي چه د سرو سترګو خریدار
په جذبه د عاشق به لیونی شي وي | که په قطع افلاطون غوندي هو ښیار
په رحمان باندي به هیڅ ملامت نه کا دار وي | هر سړی چه ستا له حسنه/مخه خبر

۱۷

د وصال په هوا والوتی مرغه شوای اوبه شوای — د هجران په اور کښي درست صورت

نه وزر کا، له هوس، نه مري له غمه وشوای — سړی سختۍ دی ګڼه یو اثر پرېږ

زړه که چاودای هم له دې غمه به وچاود زړه شوای — چه د یار د بيلتانه خواري په

د رقيب و ناکړدو ته چه نظر کړم شوای — د عاشق له آهه ړوند په تور ليمه

هيڅ پوره به دي نيمګړې نه شي خدايه شوای — که/چه بيلتون د دوه يارانو و بله نه

چي بېلتون ددوه يارانو وبله کاندي — د هغو خلقو له مرګه واورېده شوای

خدای رضا لره چا/داهسي تعويذ وکړای ښه شوای — چه لږ زه د هغه يار تر فهمه

يوځل يار په سترګو وليدای چه دا دی — دغه پسه هر چه شولای بيا هاله شوای

نوم ئي يو ځل زما واخيستای په ژبه شوای — نور مي نوم په دا جهان کښي پاتې نه

لکه درست عمر په خوله د رقيب کار کا خوله شوای — دغه هسې يو زمان زما په

زه رحمان په دا خبره حق حيران يم شوای — نه پوهيږم چه د يار له غمه څه

۱۸

چه په مخ باندي د اوښکو يو رقم وي وي — عين چه/د د تورو له پرهاره سره سم

که ګريوان مي د سپوږم د نمر مشرق شي زه چه يار په سترګو نه وينم تور تم وي

دلته سر پورته کول د چا رسيږي وي | چه پخپله د يار زلفي خم در خم
کږو ورځو غوندي نبش وهلی نه شي | که په زړه د پاسه پروت د چا لړم وي
معشوقه چه د عاشق په غم وي غوځه بې غم وي | د عاشق سترګې دي ووځي چه
همدمي د دوو همدمو هسي بويه يوه دم وي | چه د دواړو زندګي/همدمي په
که د درست جهان خوښي/ښاد ور باندي راشي مه کړه خدای چه ځوك بې ياره خوش خورم وي
بل ستم د بيلتانه د پاسه نشته | که ليدلی چا په سل رنګه ستم وي
دا قضا څه تر قاضي موقوفه نه ده | خود پخپله يار تر ياره پوري ګرم وي
راحت هر چيري هغو لره لازم وي مقدم وي | چه په درد و په محنت/محبت کښې
چه خوناب ئي د چشمانو مِي ناب شي | پيوسته له دغه جامه سره جم وي
هيڅ حاجت د هنر نشته و نصيب/رقيب ته عجم وي | که په اصل ځوک/کي عرب وي که
څه پکار بې سليمانه که خاتم وي
هنر مه غواړه طالع له خدايه غواړه | بې سلېمانه په کار ندی که خاتم وي
د رحمان خندا په اجر د ژړا ده
١٩ | تازګي د ګل په قدر د شبنم وي
هميشه دي زما سر و ستا قدم وي | تر هغه ساعته پوري څو مي دم وي
ستا له لاسه واړه ما لره نافع دي مرهم وي | که مي زهر ږدي/وي په زخم که
زه بې تا هسې ګمان کړم چه سفال دی جم وي | که نسکور مي په لبانو جام د

نور عالم كه ددنيا په ښادئ ښاد دی/وي زما زړه دي مدام ښاد دا ستا په غم وي

كه په زړه باندي مي سل غمونه راشي دا ستا غم دي تر همه ؤ مقدم وي

ما دي ستا له غمه خدای بيغمه نه كا تر هغه ساعته پورې ثومي دم وي

رحمن ستا په مخ مئين دی خدای خبر دی كه په دا كښي به هيچيري زيات و كم وي

خپل قسمت په سړي كاندي هرچي كاندي د چا برخه خاموشي د چا نارې شوې

قاعده د درد مند هسي نه ده وي چي په درد كي يو دردمن تر بله كم

چه بيلتون ورته اسان دی هغه خلك ازميښت لره په بند د بېلتانه شوای

كه يې هر زمان په آب زمزم وينځم بي مئينه مي په زړه باندي غبار وي

ثو يې سل خاره خښ نه شي په ټټر كي وي كله وي چي د بلبل و ګل ته لار

٢٠
ته چه ما ته وائي چه په چا باندي شيدا يې زه په تا شيدا يم وايه ته چه يار د چا يې

زه به تا په كومه زيرَك شم پَېړولی وايې چا زده لكه تا زده همره وايه چه ثه

زه چه كبرجن وم عاشق مي ګردن مات كړه كبريا يې ته چه لكه وې هم هغه هسي

ځان كه ستا په مينه كښي فاني كړم ثه به وكړم آهه بې پروا يې ته چه په دا هسي رنګ له

مرګ مي په تا ولي خدای اختر كړ(و) نه پوهيږم ثه دي حاصل هم شته كه مطلق په مرګ رضا/زما يې

څه شو که یم زه انګشت نما په مینه ستا کښي زیات له ما نه خوښ ته د قاضي هم د ملا یې

ستا د عشق تر توري ککر د رحمان ځار شه دا هم سهل کار دی زما یاره که په دا یې

۲۱

هر چي په حیات صورت له مرګ سره اشنا شي خلاص به د قیامت له خرخښو په دې دنیا یي

سخ د هغو ګلو چي برګریز یې په بهار وي ګل سراښې وکا له خزانه استغنا یي

غم (خو) هم(هغه) که چي هیڅ غم ورسره نه وي ولي چي ناګاه به یوه ورځ وربانديي زیایې/زیبایي

حکم د نېست په هغو دی هر(چي) هست دي هرچي هستي پریږدي له نیست یې څه پروا یي

زړه د عاشقانو د دښمن له لاس ببغم دی لکه شمع د مقراض له خصومته په خندا یي

لوره تنده نشته د قانع په قناعت کي دا کېمیا چي زده کا په خرقه کي امرا یي

هیچا سرچشمي/سره چشمي حاصلي نه کړې په خرمن کي بلکه د قحطي په ملک که شاه یې که ګدا یي

ما به رښتیا نه وې/وایی ای یارانو باري څه کړم حقه کلمه نغړده هر ګور سخته بلا یي

زورور سېلاب واړه تړل په مقامات وي زړه د خاموش په ځای لره نه(چي) ګویا یي

بي خس و خاشاکه د آتش بقا په څه وي آه و فریاد واړه په مقدار د تمنا یي

زه د رقیب چارو ناویسا کړم له حبیبه زلفې په نسبت د مار خوږلو اژدها یي

ای رحمانه هر راحت په اجر د زحمت/رحمت دی هر چي ډير(ډير)خاندي هسي ډير(ډير)په ژړايي

په پښتو کي رحمان ووېِ په فارسي کي سنايي
۲۲

چه پخته شي آشنائي تر ميان ووزي جدايي

و طالب وته وفا شي د مطلوب بې وفايي

بادشاهي کاندي بدله دديدن په گدايي

خاني پلوري په اوربشو ميرزائي په ميزرايي

نظر نه کاندي هيچيري په لوئي په بډايي

ورته کفر څرگنديږي خودبيني او خودرايي

خودرايي په عاشقي کښي له عاشقه نه ښايي

معشوقې که بې وفا دي عاشقان خوئې ستايي

غوږ ئې کوڼ سترگې ړندې وي د خپل يار په خطايي

که ئې کړي وي سل علمه هم ديني هم دنيايي

همه واړه فراموش کا چه پرې ورشي شيدايي

و مطلب ته نه رسيږي په شيخي په/او ملايي

آواره ننگ و ناموس کا په سر واخلي رسوايي

تر ناموسه ورته به شي بې ننگي، بې نوايي

هره چار ئې په اخلاص شي نه په روی و ريائي

قبلوي په دواړو سترگو هرچه يار پرې فرمايي

نصيحت پرې اثر نه کا که څوک سل ځله وايي

| | |
|---|---|
| فايده نه لري په عشق کښي | د داناؤ دانائي |
| مشکل کار ده عاشق | آسان چيرې دی بايي |
| دغه کار کولی نه شي | هر کم فهم و کجايي |
| هر کم بخت ئې کله مومي | د دلبرو همتايي |
| څه په کسب مونده نه شي | دغه کار دی عطايي |
| چه د عشق په لومه کښيوزي | نور ئې نه وي رهايي |
| بې د يار له مخه نه شي | دعاشق دلکشايي |
| د خپل يار په طلبـ گرزي | غاړې غرونه پيمايي |
| له عالمه وي وتلی | لکه صيد صحرايي |
| تل تر تله ئې وطن وي | گوشه کنج و تنهايي |
| مدام سوی لوغړن وي | د خپل آه په گرمايي |
| هر زمان ئې په اور نيسي | د خپل يار تمنايي |
| نه ئې ملک و نه ئې مال وي | نه ئې زهد و پارسايي |
| په دا هسی گرانو چارو! | معشوقه/معشوقې ئې ازمائې |
| په يوه ديدن يې/ترې يوسي | د درست عمر کمايي |
| هم مي هسی رنگه وژني | ياره ستا بې وفايي |
| چه په زړه کړم زړه مي چوي | دغه ستا خود نمايي |
| هم خودي لري بې قياسه | هم د حسن زيبايي |
| ضررنه لري بې نفع | ستا د ميني سودايي |
| ستا سودا ما لره سود ده/دی | حق به وايم خدايي |

په هیڅ مخ کښې لیده نه شي          ستا د حسن صفایي

نمر به څه له تا سیالي کا          په دا بې سروپایي

ادراک نه رسي د سروې          ستا د قد په رعنایي

لکه ستا قد و بالا/چه قد بالا دی          نشته هسې بالایي

که د ستا وصال دریا وي          زه ماهی یم دریایي

د مګسو زندګي ده          په دکان د حلوایي

زه طوطي/توتا شکر پرست یم          دا ستا شونډې میټایي

دا ګمان په رحمان مه کړه          چه بې تا به وپایي
٢٣

که په قطع د تمام جهان ملک یې          چي له ځانه خبر نه یې لا هلک یې

که په قطع د تمام جهان ملک یې          چي له ځانه خبر نه یې لا هلک یې

آدمیت خو څه په مال او په شال نه دی          ته چي خیال په شال په مال کړې ځکه سپک یې

منصفان دي د انصاف خبرې وایي          څه شو څه شو که په خپلو کي شریک یې

که د لمر په څېر څرګند شې په جهان کي          څو په زړونو پسندیده نه شي لا ورک یې

بزرګي په دلجویي کي ده د خلکو          ته چي خلک ړوبوې څرنګ به بزرګ یې

په لوی کي لویې چیري ده لایقه          کمین و ته مټ کړه که سالک یې

فلک تا غوندي پیدا کړي بیا فنا کړي          ته لا نوی خواست کوې په ناز نازک یې

داناپان به په دېوان ښکلي پند اخلي چي رحمان په خوار نظر ګوري فلک يې

څوک له خاورو ايرو پاڅوي تخت ورکړي څوک له تخته د ايرو په ډېران ول يې
۲۴
مست د هغه مخ يم چي مستانې لري سترګې بې توري، بې تېغه، قاتلانې لري سترګې

بې ليدو کتو غايان زړونه وړي له خلکو هسي چشمان بندي ساحرانې لري سترګې

هرڅوک چي يې ويني توري ترګې/نورې سترګې کتی نه شي ښکلي پريوارغوندي حيرانې لري سترګې

لب آب حيات دي او نفس (يې) د عيسی دی هيڅ عجبي نه دي که خوبانې لري سترګې

هر چي عاشقان دي هغه کله بل خوا ګوري واړه ستا په لوري نګرانې لري سترګې

ای رحمانه اوښکي هم له تخمه د باران دي کښت د هغه شين شو چي ګريانې لري سترګې
۲۵
خو زما په ورميره ماتول شېر يې که په مرګ د رقيب هم هسې شمشېر يې

مرګ خو وينې چه پخپله را پسې دی څه محتاج زما و مرګ وته ډېر يې

کبر و خيال خو لا له ځايه ستا عادت دی/ؤه او که نن زما له قصده په بل پير يې

دا بې شماره عاقلان به شي کم عقل ته چه دا رنګې په زړه وښکه/وکښه دلير يې

ستا خويونه به پخپله ځان خرګند کا زه به څه وايم چه ته تر بلا تير يې

له حيرته دي تعريف کولی نشم چه په څه رنګ دي ستايم د چا په څير يې

ما چه ستا د لبو خوند بيا موند/واخيست محظوظ شوم که سل ځله په ترخه ويل ګنډهېر يې

د جهان ښکلي که واړه د رحمان شي خدای دي نه کا چه ئي ته له دله هير يې
۲۶
په يوه زره به ورى يا به موږ ئې په يوه ذره به ګرم يا به سوړ ئې

که ځواني له خدايه غواړې ځوان به ومرې ئې او که بس له ځوان پائي خو به زوړ

بندګان خو کله/سړى کله خويا جوړ کله ناجوړ وي څه خداى/خداى خو نه ئي چه به تل تر تله جوړ ئې

عاشقي به دي آسمان غوندي څرګند کا صورت ووړ ئې که مجنون غوندي هرڅو په

بدي واړه په ښه ونيسه رحمانه ئې چي پاى بند د يار په مهر يا به مروړ

عاشقي بې جذبې چيري ده رحمانه ووړ/مروړ ئې ته مجذوب د يار په مهر کښي لا

عبادت خو په ځوان کيږي رحمانه يې په پير کي به څه زهد کړې چي زوړ
۲۷

د زړه حال و تاته څه وايم په ژبه ته خبر د خوږو زړونو په منزل يې

هم د ګل په څېر بلبل سېځې په مينه هم مئين لکه بلبل هسي په ګل يې

بې ليدو د ر څرګنديري عيب واړه په کمال د جملګ چارو کامل يې

هم قاضي يې هم ملا هم محتسب يې هم ساقي د مى پرستو په محفل يې

يو دي ذات په دواړو کونو کي شهره دى بل په نام له هر چا لويه يو په سل يې

چي ته مخ په عبادت کي نه جار باسې درسته شپه دي (نفس) بدي کا ته يې خپل يې

وركول او پېرودل دي په خپل لاس دي | که و چا يې وركوي كه يې اخل يې

جار تر هسي رنځ نيولو شه رحمانه راغل يې | چي شهي/شه يې په پوښتنه وي

خداى طاعت، عبادت څه كوي رحمانه | خويې مينه د سړي ده ازميل يې

۲۸

په ځوان كښي بد دماغه بد ګمان يې | چه پيري درباندي در شي بيا ناتوان يې

كه په دا دي زړه ښه كيږي دا خو نشته ژوې هم به ځوان يې | چه به تل تر تله/هم تر ډيره

چه هر گز دي په لاس نه دي كښيوتوني | بيهوده د هغو چارو په ارمان يې

چه بې خدايه زړه تړ ې په نور څه پوري يې | هم په خداى هسي باور كړه چه نادان يې

هسي رنگ دي و هغه جهان ته شا كړه | ګويا تل به مستقيم په دا جهان يې

همره سر دي و خپل خداى وته ټيټ نه دى | لكه ټيټ په لور د خان و د سلطان يې

يوه شپه په طاعت نه شې روښولى پاسبان يې | هره شپه په مال و ملك باندي/پسي

په تسبيح دي تانده ژبه وچ لرګى شه | پوچ ګوي لره بلبل غوندي ګويان يې

و نمانځه ته چه نمر خيژي هاله پاخې | په قلبه پسي په نيمه شپه روان يې

اوداسه لره كوزه اخيستى نه شې پهلوان يې | چه په لو او په لور ورشې

پټې سترگي لكه ستور(ي) په ګاڼ ګرزې روان يې | كه پريوزې و كوهي ته هم دوان/وته

پښيماني تر پښيمان لا پخوا بويه يې | نه هغه چه بيا په تير ساعت پښيمان

د هلك په څير به لاس اچوې اور ته | نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان يې

چه و بل ته نصیحت کا ځان ئي هیر وي نور څوك نه دی هغه ته
عبدالرحمن یې
۲۹
زه د ستا له غمه ژاړم واړه ویني واړه ویني، واړه ویني، واړه وینې

خود مي وینې چي په تش کاته دي مرمه سنګینې لا خنجر په کاڼي مُرې دل

هر زمان مي په حضور د سترګو وژنې لا یقین دي د زړه نه شي بې یقینې

عالم ستا په مینه ژوي نه پوهېږم مینې زه په څه سبب وژلی یم ستا

ډېر عالم به نورې رنګ کا معلومېږي تاچي هسې جامې واغوست رنګینې

پښې یې نه وي چي وبله خواته درومي سپینې هسې سکښې په غمزه د عاشق

که صورت مې پر بله پورې معلومیږي زړه مي ستا له غمه چاود دی نازنینې

هغه څوک دی چي ترتابه بهترین وي؟ ای تر واړو مهرویانو بهترینې

چې دي زلفې د رحمان په زړه وریځ کړې تر بڼویې ځکه څاڅي اوبه سپینې

څوک له خاورو ایرو پاڅوې تخت ورکړې څوک له تخته د ایرو په ډیران ول یې

۳۰
ورك شه ورك شه بد کردار و بد سړی که پردی که دي ورور که دي عزیز وي

تر هغه لا نیکو کار بیګانه ښه دی چه بد کار شي د چا زوی او یا نمسی

لرګي لوښي همه واړه پرې مردار وي بد کردار دي سور لنډي یا ورې سپی

هغه خلق به همه واړه لیوني کا چه په کلي کښي یو سپی شي لیونی

بل علاج د لیونیو سپیو نشته بې له مرګه چه ترې ډك کاندي کوهی

حرام خور د مخنثو په حساب وي | که په توره یا په تیغ وي میړنی
میړ ني ویلي بویه و هغه ته! سړی/کاندي یو شی | چه بې وجهي آزار نه کا هیڅ
دیگ ئي ایښی په دیگدان ړومبی تر تیغ وي | چه ئي سوړ په آه سرد نه شي نغری
هسي فیض ئي و هر چا وته رسیږ ي | چه باله شي د خپل وقت حاتم طی
اې رحمانه چه بد فهم او بد کردار شي سړی | راته وایه سپی بهتر دي که

٣١

که له ډیره غمه دم د چا ختی لرغونی | زه به مړ وم ستا/ومه په عشق کښي
زړه مي هسي ستا په تورو زلفو بایلود | لکه ورك په توره شپه کا ثوك کالی
په یوه ساعت مي رد هم مي قبول کا پردی | نه پوهیږم چه ئي خپل یم که
په یو لاس کښي ئي مرهم په بل خنجر دی | نه په مړیو کښي حساب یم نه ژوندی
که په مرگ د عاشقانو ئي رضا ده/وي | خدای دي ما کا تر همه واړو ړومبی
و کوم دم ته به ادراک د پاړو رسي | هر ویښته یې د کاکل شو منگری
خون بها مي د ستا په مثل نشته سوی | ما پخپله قبول کړی دا خپل
ثوك دي غم زما په ډیرو اوښکو نه خوري | کم به نه کا په خوردن سره ندی
د هجران په توره شپه کښي ئي ویریږ م سپوږمی | چه ئي نه وینم د وصل سپین
د یار غم لکه (زمری)مزری راباندي راشي مزری | خدای دي پیښ نه کا په چا باندي
چه پرې غم غلطومه د شپې پاڅم | کله می په شونډو کیږدم کله نی

(ګاه)کله کتاب کله رباب په لاس را واخلم	بارې درد مي په هيڅ رنګ نه کا کمی

همسايه مي واړه وواته له خوابه/خوبه	که په  سل  کوټو دننه کړم زګيروی

که عاشق  تر معشوقې  پوري  يو سپی وي/دی	خدای د هجر په توره مه وژنه يو سپی

زه رحمان د يار په غم کښي هسي ډوب يم	چه هيڅ نه  وينم په سترګو مګر دی

۳۲

چه دارو د درد و غم وي هغه می	ساقي مارا/راکړه يو دوه جامه پياپی

مي د خپلو لبو را  نه د انګورو	چه اول ئي نوشيدن وي پسې قی

په هر تېغ کښي چه آب نه وي د شرابو	څوك د غم په غليم نه مومي بری

جام د ميو چه غمخوار د کل جهان شه	زه  به اوسم په دا  غم کي تا به کی

راشه  يو  ځله  مي هسي مست خراب کړه	چه خبر نه شم له  حاله  د  هيڅ شی

بې خودي هسي پناه ده زور آوره	چه له هره غمه خلاص کاندي سړی

زه هغه تحصيل تمام ګڼم په عشق کښي	چه ئي روغ وګړي بولي ليونی

رحمان صلحه له رقيب سره پيدا کړه/په دا کا سپی	آشنا شه دی البته خوړونکي

۳۳

ډيري خولې زما په ياد شکر خورې شوې	بيا زما په زمانه خاورې ايرې شوې

يو ه برخه خدای هرچا لره ورکړې	د چا برخه خاموشي د چا نارې شوې

د چندڼو ونی وسوليدې لاړې	هزار څانګې د شمشادو په ارې شوې

په هغو  زمکو چه  روغې  پرې  ماڼ وي	د ايام په ګردشونو هديرې شوې

په دنيا کښي چه بنياد د آشاناي  کا	د هجران توري هغو لره تېرې شوې

دا فلک خدای پیدا کړو دا ئي خوي دی شوې	چه و چا وته/چاته ئې دعا چاته ښیرې

د دنیا د محلونو خښتې واړه	و رحمان ته د سرونو منارې شوې

۳۴

بوصلِ تو مارا کجا هاته هې	که وصلِ تو خیلې بړې بات هې

بَکوی تو گفتم که مسکن کنم	ولې کی مرا این درجات هې

خمِ زلفِ تو گوشه ابروان	دلم را عجائب مقامات هې

مکن پیش من وصف خورشید و ماه	که از حسنت این کم علامات هې

همی دادې دشنام و گالي مرا	بسویم همین از تو سوغات هې

نگاهت نه امروز خونم بریخت	که دایم ترا همچون عادات هې

ز آغوش رحمن مرو با رقیب	که این سفله بد خوئ و بد ذات هې

## مخمس

## ۳۵

هغه یار چه ښایسته دی تر آفتابه	مخ به کله را ځرگند کا له نقابه/حجابه

بیلتانه په زړه زهیر کړم بې حسابه	یو سبب وکړې مسبب الا سبابه

چه زما ملاقات وشي له احبابه

ملاقات د ښایسته ؤ مي نصیب کړې	د ښایست په گلستان مي عندلیب کړې

عندلیب مي په گلشن د خپل حبیب کړې	خدایه ما په دلبرانو کښي قریب کړې

و مي ژغورې د دې اهل له عتابه

هغه یار چه زه ئي مینه په دیدار کړم	همیشه ئي و دیدن ته انتظار کړم

شپه و ورځ پسي نارې وهم کوکار کړم	که په روي ورته تمام جهان رویدار کړم

سترگي نه پورته کوي د ناز  له خوابه
بيلتانه ئي پټ پنهم په زړه تاراج کړم          و ديدن ته ئي په هسپ رنگ محتاج کړم

چه غرقاب ئي د غمونو په امواج کړم          هيڅ پاياب ئي مونده نه شي څه علاج کړم

د آشنا د ميني غم شه نا پايابه
ته چه کس يې د جمله ؤ بې کسانو          هم کار ساز يې د  جمله ؤ خام کارانو/کار سازانو

الهی په بزرگ د بزرگانو          زه وصال په دعا غواړم د خوبانو

لا به کله دا دعا شي مستجابه
اسير کړی دي د زلفو په په طناب يم          تکبير کړی دي د سترگو په قصاب يم

د  کشت غوندي مدام په اضطراب يم          لکه زه چه  ستا له غمه په عذاب يم

خبر  مه  شه  هيڅ بنده له دي عذابه
دريغه مه وای په دنيا کښي پيدا شوي          او که وای هم په دا هسي شان خومه وای

لکه زه يم د هجران په لنبو سوی          څو به گرزم د هجران په اور (الووی)اولوی

چه سينه  مي شوه په درست عمر کبابه
هي هي څه مي دا خراب خاطر ناښاد شه          زيست روزگار مي هميشه آه و فرياد شه

عمارت  مي  د زړه هسي رنگ برباد شه          چه حباب غوندي بې  ببخه بې بنياد شه

د ښاد/بنياد  طمع به څه/څو کړم  له حبابه
پټ پټ گرزم د ناصح له نصيحته          راته کاندي نصيحت په څو صورته

چه توبه کړم د خوبانو له قربته هيڅ ځواب ئي په ما نه شي له غيرته

در مانده ورته ولاړ يم لاجوابه
دا ځواب څه هسي نه دی چه په خوله شي د عشق راز څه هسي نه دی چه وايه شي

دا مشکل حکايتونه په ما نه شي د دې بحر بې پايان حساب په څه شي

چه ئي زه و چا ته وايم له حسابه
چا موندلي د دې بحر پايان نه دی دغه راز و هر سړی ته عيان نه دی

هيچا کړی د دې چارې بيان نه دی دغه واړه عاشقي ده رحمان نه دی

چه په خوله کښي در و لعل لري سيرابه
۳۶
ستا جفا د حد په هورته ده صنمه تل مي اوښکي موج وهي د زړه له يمه

څو به پټه دا قصه اوسي پنهمه هسي ډوب په فکر تللی يم له غمه/پروت يمه بې دمه

نه پوهيږم چه په غره يم که په سمه
که خبر وای له دې هسي رنگ خوار ما به نوم اخيستي نه ؤ د يار

ستا د غم په درياب ډوب يم تر مر بې تا نه لرم هيڅوك د دستگير

مگر ته پخپله لاس را کړې همدمه
ما وې نوربه آشنائي له هيچا نه کړم هم په دا رنگه مي نيت وه بارې څه کړم

د قسمت علاج په چا شي چه ئي زه کړم که په سل رنگه تالاش و تدبير وکړم

خلاصی نه مومم له لوحه له قلمه

خوبرویان که بې وفا دي خو هم وړه دي                    عاشقان که وفا دار دي خو هم پړه دي

ستا له غمه هر چه دي زما په زړه دي              اوس به حال و چا ته (څه) وایم چه څه دي

غرض دا دی چه زه ګرم یم ته ناګرمه

یو خو دا چه په صورت ئي پري ږویه          هم په خوي و په خصلت فرشته خویه

هم په قد و په قامت هر ګوره لویه          بیا به نه مومي څوك تا غوندي دل جویه

که ئې غواړې په هژده هزار عالمه

ستا له غمه زه په ځان کړم هسي چارې                    چه دښنه ئي وبله نه کا ګلعذارې

ته په څه سبب زما نه دل آزارې                    دا زما ګناه راوښیه دلدارې

چه توبه کړم نصوحا غوندي محکمه

لاس تر غاړه د رقیب سره خندا کړې            چه ما وویني له قصده راته شا کړې

خدای ئي ویني هغه چارې چه په ما کړې                    تر ابدي ورځې پورې به جفا کړې

که به کله و جار ووزې له ستمه

تا چه هسي بې نیازي د ځان پېښه/توښه کړه                    په عاشق دي د خندا زمکه متره کړه

بیا دي ورځ په غریبانو توره شپه کړه                نور دا هسي د جفا خویونه مه کړه

خلقه به دي له جوره شي برهمه

ستا زما له میني هر څوك خبر دار دي                    دا خبرې کوراکور په هر دیار دي

چه فلانا فلانا سړې سره دوستدار دي          اوس په بیرته جار واته و ما ته عار دي

چه رسوا شوم تر عرب و تر عجمه

هغه ژوي چه په تا باندي مين وي پـه وګړي به رسوا لکه کوهکن
وي

هميشه انګشت نما په مرد و زن وي چه دانخښې په کښي نه وي
دروغژن وي

که په هره ګړۍ خوري هزار قسمه

نشانه د عاشقانو اول دا ده چه مدام ئي سريکار وي له فرياده

تل نامه د بدنامۍ وي پرې زباده نه ويريږي له پيغوره له اهداده

بې د يار د جدايۍ له ماتمه

هر چه زړه ئي مبتلا شي په بتانو زيست ئي نه شي يو ساعت بې
مهرويانو

که څوك ورکړي بادشاهي د بادشاهانو په نسبت د هغو سويو
سوختګانو

دا متاع ده تر يوه خسږي /خسڼي کمه

که سليمان غوندي مسند ئي په هوا وي په سبب د عاشقۍ به
خاك پا وي

هميشه به په فرياد و په غوغا وي چه دا هسې نشانې په کښي
پيدا وي

ترو هاله پرې عاشقي ده مسلمه

عاشقي دي هيڅوك نه ګڼي اسانه دا خبره ده له حده پهورته ګرانه

وصال نه دی چا موندلی بې هجرانه ته له ځان سره اټکل وکړه
رحمانه

په دنيا کښي ښادي چيري ده بې غمه